

# هوتکیان

لیکونکی

عبدالرؤف بېنوا

ژباړن: یونس مراد





# هوتکیان

لیکونکی
استاد عبدالرؤف بینوا

ژباړن

یونس مراد

**Published by:**
SARAF *Book Publishing Institution*
*Quetta*
2002

## د کتاب پېژندنه:


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | :: هوتکیان |
| لیکونکی | :: استاد عبدالرؤف بېنوا |
| ژباړن | :: یونس مراد |
| مهتمم او د پښتو انځورګر | :: صالح محمد صالح |
| د چاپ شمېر | :: (۱۰۰۰) ټوکه |
| د چاپ ځای | :: یونایټېډ پرېس ـ کوټه |
| د چاپ کال | :: ۲۰۰۲م / ۱۳۸۰ل کال ژمی |
| کمپوز / ډیزاین | :: صحاف کمپیوټر ـ کوټه |
| کمپوزر | :: احسان الله کرزی |
| بیه | :: (۶۰) کلداري |

# د خپرونکي یادښت

د هوتکیانو د دورې په اړه دا اثر د اروانښاد استاد عبدالرؤف بېنوا له غورو تاریخي اثارو څخه ګڼل کیږي، چي په ښه او هراړخیز ډول یې ددې دورې پر کارنامو، اتلانو، جګړو ستونزو او بریاوو رڼا اچولې ده.

که څه هم نوموړی کتاب په پارسي لیکل شوی او په ۱۳۳۵ل کال د افغانستان تاریخ ټولنې له خوا خپور شوی و، چي بیا وروسته د ښاغلي یونس مراد له خوا په پښتو ژباړل شوی او په ۱۳۴۵ ل کال د همدې ټولنې له خوا خپور شوی و، صحاف نشراتي مؤسسې هم د خپلو پوهنیزو، تاریخي، ادبي او کلتوري کتابونو د خپرولو په لړ کي د هوتکیانو پښتو ژباړه بیا خپروي.

خو دا ځل دا ژباړه په داسي ښه خپریږي چي پخوانۍ ژبنۍ، ګرامري او نوري تېروتني او نیمګړتیاوي یې هم لیري کړل شوي دي. که اوسنی کتاب له پخواني سره پرتله شي دا سموني او غوره لاسوهني به ترسترګو شي. په پخوانۍ ژباړه کي ځیني جملي داسي ژباړل شوي وې، چي د اصلي مانا ضد مفهوم یې ورکاوه. همدا راز ټول کتاب ټکی په ټکی ژباړل شوی و او نوی پښتو ګرامري او ژبنی جوړښت په‌کي مراعات شوی نه و. نو اوس په دې ژباړه کي تر ډېره حده دا هڅه شوې چي له نوي لیکدود سره برابر شي او د ژبې پېچلتیا یې لیري کړل شي. په تلو - تلو کي له ښاغلي صالح محمد صالح څخه مننه کوو چي دا ژباړه یې بیا - وکتله او تر څو ځلي پرتلې وروسته یې چاپ ته چمتو کړه.

نشراتي اداره لوستونکو ته ددې ګټور تاریخي کتاب د لوستلو حوصله غواړي او هیله کوي چي د ګران هیواد فرهنګ، تاریخ او کلتور ته د غوره خدمت په بهیر کي د داسي نورو ګټورو او ارزښتمنو کتابونو د خپرولو وس پیدا کړي.

آمین

په فرهنګي مینه

**صحاف نشراتي مؤسسه - کوټه**

# هوتکي دوره

د افغانستان تاریخ نوې دوره د هوتکیانو له غورځنګ سره پیلېږي، وروسته تر دې چې ظهیرالدین محمدبابر په کابل کې پاچهۍ ته ورسېد، نو په بالاحصار کې یې د هند د فتوحاتو نقشه طرحه کړه او دده له پرمختګونو سره د هیواد د واکمنیو مرکزي ټکي هم بدلون وموند.

په داسي حال کي چي اولاده یې په اګره او ډیلي (ډهلي) کي اوسېده، نو کابل د (دارالعیش) او فرعي مرکز بڼه غوره کړې وه، د ایران صفویانو د خپل ځواک له کمال څخه کار واخیست، نو د هېواد لویدیزو(غربي) خواوو ته یې سترګي نیولي وې، چي وخت پر وخت یې له هراته تر کندهاره فتوحات وکړل.

د ګرګین خان ګرجي بېرحمي او ظلم د صفوي واکمنۍ وروستی پړاو و، چي د کندهار پاڅون او د میرویس خان هوتک مشرتابه ورته د پای ټکی کښېښود او په کندهار کي د صفویانو د تشېدد غبرګون (عکس العمل): د اصفهان د فتحې او په ایران کي د صفوي حکومت د سقوط لامل شو.

د هوتکیانو غورځنګ د اوسني افغانستان په تاریخ کي د افغانانو د فطري آزادۍ غوښتني، د هیواد او خاوري د ساتني او خپلواکۍ خوښوني یو بل باب دی.

دا څپرکی (فصل) څه موده وړاندي د تاریخ ټولنې په غوښتنه د یوه پیاوړي لیکوال او د تاریخ ټولنې یو افتخاري غړي او د کابل راډیو نشراتي مؤسسې رئیس ښاغلي عبدالرؤف بېنوا په قلم لیکل شوی او دا دی نن دا اثر د لوستونکو مخې ته ږدو، له لیکوال او لوستونکو څخه په مننه، له تاسو څخه هیله کوو چي که هره نیمګړتیا په کي وینئ، له لیکوال سره یې د همکارۍ له لاري خپله لیکوال یا تاریخ ټولني ته ولیکئ، چي د راتلونکي چاپ په سمون کي نوره هڅه هم وکړو.

احمد علي کهزاد

۱۳۳۵/ لړم (عقرب)/۱۴ ل کال

# ددې کتاب لیکل

د افغانستان تاریخ ټولنې د فاضل او پوه رئیس او زما د درانه دوست ښاغلي احمدعلي کهزاد د هڅونو مننه کوم، چې زه یې د ګران افغانستان د داسي یوې دورې لیکلو ته وهڅولم؛ سره له دې چې دا د افغان ملت یوه رڼه او ځلانده دوره ده، خو تر اوسه پوري په هیواد کي دننه ددې دورې په اړه کوم مستقل کتاب نه دی لیکل شوی او دا لومړنی اثر دی چې څه له پاسه د هوتکیانو دورې ټولې پېښې په لمن کي رانغاړي.

ماته چې ماخذونو څومره لاربنوونه کړې، نو هڅه مي کړې چې پېښې هراړخیزې، بشپړې او مفصلې وي، خو بیا هم دا د هوتکیانو په اړه لومړنی اقدام دی؛ له درنو لوستونکو څخه هیله من یم چې که کومه تېروتنه ویني او یا ددې دورې په اړه نور تفصیل مومي، نو د پېرزوینې له مخې دې زما په نوم یا د تاریخ د درانه انجمن په نوم راولیږي او پر موږ دې منت کښېږدي. چې په دویم چاپ کي په پام کي ونیول شي.

دا دی د (**درویش تحفې**) په ویلو سره خپل ناچیز اثر د افغانستان ځوان نسل، په ځانګړې توګه هغو کسانو ته چې تر خپل تاریخ د نورو په تاریخ زیات پوهیږي، وړاندې کوم. ځکه چې: د پردیو په تاریخ پوهېدل لوی کمال دی، خو په خپل تاریخ نه پوهېدل بیا یوه لویه نیمګړتیا ده.

(عبدالرؤف بېنوا)

# فهرست

## دريمه برخه



## څلورمه برخه

## پنځمه برخه



## شپږمه برخه

## اوومه برخه

# لومړۍ برخه
# د هوتکیانو د سلسلې شروع کېدل

### هوتک بابا (٦٦٧ ــ ٧۴٠ هـ ق):

د هوتکیانو د سلسلې مخکښ یو سړی و چې( هوتک )نومېده، وروسته بیا قوم ورته د هغه د علمي او روحاني حیثیت له کبله د(بابا) لقب ورکړ، چې د افغانانو په نزد ډېر لوړ اعزازي لقب دی او (په هوتک بابا) مشهوره شو.

هوتک بابا د (بارو) زوی او د تولر یا توران لمسی او د غلځي بابا (د غلځي قبیلو د ستر نیکه) کوسی دی[۱] چې په (٦٦٧ هـ ق) کال په (اتغر) سیمه کښې[۲] زېږېدلی او په (٧۴٠ هـ ق) کال وفات شوی دی[۳].

دی سره له دې چې یو ستر شیخ و د اتغر او سیوري[۴] د افغانانو مشر هم و د ملي مشر او رئیس په حیث شمېرل کېده.

کله چې مغلو د ارغنداو سیند پر غاړه او د اتغر، اولان[۵] او د کلات پر علاقو باندې یرغل وکړ، هوتک بابا د ملي مدافعینو په

(۱) حیات افغاني، ۲۵۶ مخ. خورشیدجهان. ۲۱٠ مخ. پټه خزانه، ۷ مخ.
(۲) اتغر: له دوو کلمو: (اته) او (غر) څخه جوړ شوی، چې د اتو غرونو په معنا دی او د کلات په جنوب شرق کښې د یو ځای نوم دی، چې د هوتکیانو اوتوخیانو استوګنځی او حکومتي ځای دی. (*د پټې خزانې د۷ مخ لمنلیك*)
(۳) پټه خزانه ۷ او ۱۱ مخونه.
(۴) سیوری یا سوری: د سایې په معنا د کلات په جنوب کښې د هوتکیانو اصلي استوګنځی
(۵) اولان: د کلات او مقر ترمنځ داوسني شاه جوی په شمالي حدودو کښې یو ځای دی چې د پخوانیو او زړو ودانیو نښې په کښې څرګندې دي. (*د پټې خزانې اتم مخ*)

سر کښي و درېد او د يو تجربه لرونکي قومندان په شان يې د افغاني قواوو اداره کوله او له چپاو راوړونکو قواوو سره يې سختي مقابلې وکړې، په تېره بيا هغه جنګ چي د هوتک بابا ترمشرۍ لاندي د افغاني او متجاوزو قواوو تر منځ سور غر[1] ته په نژدې ځايو کښي وشو، د هغه وخت له ډېرو سختو جنګونو څخه شمېرل کېده. لکه چي د پټې خزانې ليکوال د خپل پلار له خولې ليکي( په هغه جنګ کښي سورغر داسي په وينو ککړ شوی و چي د لمر په وړانګو کښي ځلېده)[2] او هوتک بابا په همغه جنګ کښي د جنګياليو افغانانو د زړورتيا لپاره په پښتو ژبه خپلي مستوونکي او مهيجي ترانې ويلي دي، چي دلته يې راوړو:

پر سور غر بل راته نن اور دی  وګړيه جوړ راته پېغور دی
پر کلي کور باندې مغل راغی  هم په غزني هم په کابل راغی

* * *

غښتليو ننګ کړئ دا مو وار دی  مغل راغلی په تلوار دی
په پښتونخوا کې يې ناتار دی  پر کلي کور باندې مغل راغی

* * *

آ، د مرغې[3] غښتليو راسئ  پر ننګ ولاړ د پښتونخوا سئ
توري تېرې، غشي تر ملا سئ  پر کلي کور باندې مغل راغی

* * *

زلمو په غشيو کړئ وارونه  د تېرو تورو ګزارونه
ور وړاندې کړئ خپل تېرونه  پر کلي کور باندې مغل راغی

* * *

---

(۱) سور غر: په پارسي کښي د( کوه سرخ ) په معنا دی، شاه جوی او اولان ته په نژدې شمالي برخو کښي يو غر دی. ( *پټه خزانه، اتم مخ* )

(۲) پټه خزانه، ۷ مخ.

(۳) مرغه: دهغې پراخي سيمي نوم و، چي د کندهار په جنوب شرقي کښي له ارغستان سيمي نه پيل شوې او آخر يې د سلېمان غره حدودو او د بلوچستان منځنيو سيمو ته رسېدله، د ارغستان سيمه، د کلات جنوبي برخه، د کوږک د غره لمني او د کاکړستان يوه برخه پکښي شامله وه.( *پټه خزانه: ۹ مخ* )

زمـــا د زلمـــو وينـــي بـــهيږي مځکــه او غرونــه پــه ســره کــيږي
مـــيرخي زغلـــي او ترهـــيږي پـر کلـي کـور بـاندې مغـل راغـی

* * *

پښتنـو هلـئ پـر غـره جنـګ دی سـورغر پـه وينـو د دوی رنـګ دی
مـــهال د تـوري دی، د ننـګ دی پـر کلـي کـور بـاندې مغـل راغـی

* * *

زلمـو پـر ننـګ ځانونـه مـړه کـړئ د ښـن پـه غشـيو مـو ښـيه کـړئ
د پښتونخـوا مځکـې سـاته کـړئ پـر کلـي کـور بـاندې مغـل راغـی[1]

هوتک بابا، وروسته تر دې چې يرغلګرو ته يې درانه تلفات ورسول او له ځيلي خاوري ځخه يـې وشړل، د قوم په نزد د ده ګرانښت محبوبيت او شهرت ډېر زيات شو او د ده نوم به په ډېر عزت او درناوي سره يـادېده. تردې چې په پښتنو قبيلو کښې د يوې نوې سلسلې د رامنځته کوونکـي پـه توګه وپېژندل شو، د ده اولاده اولمسي د ( هوتکيانو ) په نامه يـاد او وبلـل شول، چې وروسته يې بيا د افغانستان په ملي تاريخ کښې لوړ مقام ونيـو او اوس په دې کتاب کښې زموږ د بحث موضوع ده.

## ملـکـيـار، پيدايښت ( ۷۱۵ هـ، ق ):

کله چې په ( ۷۴۰هـ ق ) کال هوتک بابا وفات شــو او د هغـه مشر زوی ( ملکيار ) په پنځه ويشت کلنۍ کښې د قوم په خوښه د قوم په مشرۍ و ټاکل شو.

ملکيار يو غښتلی او د پياوړي مـټ ځښتـن ځوان و، چـې د پټـې خزانې د ليکوال په قول په جنـګ او جګړه کښې يـې له لسو تنو سره مقابله او برابري کوله[2] ده، وروسته تـر دې چـې د قـوم د مشرۍ واګې پـه لاس کښې ونيولې، د ټولـو نـه لومړی ئـې دښاړو ځمکـو آبـادۍ او د زراعتـي توليداتو زياتولو او پر مخ بيولو ته پاملرنه وکړه او د قوم زلميان يـې د چينـو او کـاريزونو کيندلـو تـه را پورتـه کـړل، تـر دې چـې د ملکيـار پـه دغو کارونو د پرديو کينه او حسد راوپارېده او د افغانانو د زراعتي توليداتـو

(۱) پټه خزانه، ۱۰ او ۱۱ مخونه.
(۲) پټه خزانه. ۱۱ او ۱۲ مخونه.

له زیاتېدلو او پراختیا څخه په وېره کېښي شول او د ځان لپاره یې یو ډول خطر وباله.

څرنګه چې له همدې کبله تر ټولو لومړی د هند مغلو د افغانانو د زراعتي پرمختګ د بندولو او د ښارو څمکو د آبادۍ د پراختیا پلان د تکمیلېدو د مخنیوي او یا د افغانانو د زراعتي محصولاتو دتېرولو او هضمولو لپاره د سیوري پر سیمه ناڅاپي چپاو وروړ او له ملکیار سره یې سخت جنګونه وکړل، که څه هم په پیل کښي ځیني افغانان بېکوره او زیانمن شول او د مرغې، ږوب یا ژوب[1] او د وازه خوا[2] سیمو ته ولېږدېدل، خو تر لږي مودې وروسته یې د دویم ځل لپاره د ملکیار په مشرۍ پر تېري کوونکو (متجاوزینو) یرغل وکړ او هغوی یې له سیوري سیمې څخه وایستل او سیوري یې بېرته بیا ودان کړ.[3]

ملکیار، سره له دې چې یو ملي مشربه سړی و، روحاني جنبه یې هم درلوده او خلکو به په خپلو حاجتو کښي له هغه څخه دُعا غوښتله، سربېره پردې یې شعري طبعه هم درلوده، چې پټې خزانې د هغه یو ډېر طبیعي شعر په ۱۳ او ۱۵ مخونو کښي خوندي کړی دی، هغه دغه شعر د (۷۴۹هـ) کال په پسرلي کښي د ترنک د مست سیند پر غاړه چې په هغه کال کښي یې بېساري طغیان کړی و، ویلی دی.

دا چې ملکیارڅو کاله د قوم مشر و؟، په کومه نېټه وفات شوی؟ او له ده وروسته تر هغې نېټې پوري چې د میرویس پلار (ښالم خان) ذکر ته راوځي، له هوتکي قبیلې څخه کوم کسان د قوم په مشرۍ منل شوي دي؟ په ښه ډول معلومه نه ده، یوازي سلطان محمد لیکي چې:

وروسته تردې چې دولتخان سدوزي په نهه سوه او پنځلسم

(۱) په جنوبي پښتونخوا کې یوه مشهوره سیمه ده، چې د انګرېزانو استعماري ځواک تر واکمنۍ مخکې د افغانستان یوه برخه وه، دا سیمه د اوسني افغانستان په جنوب غرب کې پرته ده( ۹۶۲۶ مربع میله ) مساحت لري. ختیزي خوا ته یې سلېمان غر او لویدیځ ته یې کوټه او پښین سیمې پرتې دي ( پښتونستان، د بنده د تالیف ۱۳۲ مخ ).

(۲) وازه خوا: د غلجیانو په لوړه سطحه کښي یوه پراخه دښته ده، چې د غزني دجنوب شرق خواته ترسلېمان غره پوري اوږده پرته ده(د پټې خزانې د ۱۲مخ حاشیه)

(۳) میرویس نیکه، د بنده تالیف، ۲۳ مخ.

هجري کال پر دوی (موخه د غلجیانو قبیله ده) لښکر وکیښې، حسین بن ملکیار، بن هوتکي یې چې د میرویس پلار دی ونیو او له خپل عیال او اولاد سره یې راوست او په ښارصفا (شهر صفا) کښې یې ژوند کاوه[۱].

خو، د سلطان محمد دغه لیکنه له سموالي او حقیقت څخه په دوو دلیلونو خالي ده: لومړی ځرنګه چې دولتخان سدوزي د ۱۱۱۵ هجري کال په حدودو کښې د ګورګین په امر په شهادت رسېدلی دی[۲] د ده د ژوند نېټه په هیڅ ډول له هغې نېټې سره مطابقت نه لري، چې سلطان محمد یې یادوي. دویم دا چې حسین د ملکیار د زوی نوم و، خو د میرویس پلار نه دی. بلکې ځرنګه چې به ددې کتاب په دویمه برخه کښې په تفصیل سره ولیکل شي، د میرویس پلار شاه عالم خان په (ښالم خان) مشهور دی چې په شپږم پښت د ملکیار زوی حسین ته رسېږي[۳] له دې کبله ځرګنده نه ده چې د ملکیار زوی حسین به هم د قوم په مشرۍ منل شوی وي، که نه.

سره له دې هم کوم شی چې د هغې دورې له پېښو څخه ځرګندېږي، له هوتکي کورنۍ څخه (د هوتک بابا د ورور دی) توخي کورنۍ ته د غلجیانو قبیلو د ریاست نقلېدل دي، دغه انتقال د ملکیار د ریاست او د ښالم خان د ژوندانه د تاریخ ترمنځ شوی او د ابدالیانو او غلجیانو د ځمکو د حدودو ټاکلو تړون چې د ابدالیانو او غلجیانو د دوو مخورو او نفوذلرونکو کسانو له خوا د افغانانو ترمنځ د اختلافونو او نفاق د لیرې کولو په مقصد شوی و، د همدې تاریخي حقیقت شاهد دی، هغه په دې ډول وو چې د اصفهان صفوي حکومت له یوې خوا او د هند مغلي حکومت له بلې خوا د خپلو استعماري سیاستونو په وجه چې غوښتل یې د ابدالیانو او غلجیانو په نومونو د افغانانو تر منځ د نفاق، اختلاف او کورنیو جنګونو تخم وشیندي او له هغه څخه پخپله ګټه

(۱) تاریخ سلطاني، سلطان محمد، ۷۱ مخ.
(۲) کابل کالنی، د ۱۳۲۴ - ۱۳۲۵ ل کال، ۲۰۸ مخ، دابدالیانو د مشاهیرو مقاله.
(۳) حیات افغاني، په اردو ژبه، ۲۵۶ ـ ۲۵۷ مخونه. خورشیدجهان، ۲۱۰ مخ.

**استعماري محصولات لاسته راوړي. خو د کندهار د افغانانو ملـي او تجربه لرونکي مشران او رئیسان چي د ابدالیـانو لـه خـوا خدادادخـان چـي په سـلطان خـوده کـې مشـهوره و[1] او د غلجیـانو لـه خـوا سـلطان ملخـي توخی[2] د پردیو خلکو په استعماري دسیسو او د فتنې په پیدا کولـو بـاندي پوه شـول او پخپـل منـځ کـي یـې جـرګه وکـړه او د جلـدک پـه حـدودو**

(۱) خدادادخان چي پـه (سـلطان خـوده کـي) مشـهوره و، د خواجـه خضـر زوی او د سدوخان لمسی و، چي خواجه خضرخان اویـا کالـه د ابدالیـانو ریاست او حکومت پر غاړه درلود او سدوخان هم هماغـه مشـهوره سـدوخان دی چـي د (سـدوزیو) ټـبر او قبیله ورته منسوبه ده. خدادادخـان د ۹۶۵ هـ کـال د لوی اختر میاشتي په (۱۷) مه نېټه زېږېدلی دی، دی یو لایق ریس او ښه سیاستمدار و، چي د خپل فطري اسـتعداد او لیاقت په وجه یې وکړای شول دابدالیانو او غلجیانو ترمنځ ښه تفاهم پیدا کړي، له سلطان ملخي توخي سره مفاهمه وکړي او دوستي ټینګه کړي.

(تاریخ سلطاني، ۶۰ مخ. حیات افغاني، ۱۲مخ، د۱۳۲۴ ل کـال، کـابل کلنۍ ۲۵ کال).

(۲) سـلطان ملخـي توخـي د مـور لـه خـوا د مـیرویس، نیکـه دی، چـي د هر کلونـه د غلجیانو قبیلو حکومت د ده په کورنۍ پوري اړه درلوده، ملخي ځانګه تر اوسه پـوري په توخیانو کښي مشهوره ده او تر سلو کورنیو پوري د تازي رباط پـه جنوب کـښي د شاجوی او کلات ترمنځ اوسېږي، سلطان ملخي داورنګزېب معاصر و چي پـه ۱۰۶۸ هجري کال کښي د هند سلطنت ته ورسېد او په ۱۱۱۸ ه کال کښي وفات شـوی دی، سلطان ملخی د انځرګي او سرې تیږې (سرخ سنګ) ترمنځ د دروازې په جنـګ کـښي ووژل شو. تر ده وروسته د ده زوی حـاجي عـادل د حکومـت واګي پخپـل لاس کـښي ونیولې او پس له ده نه د ده زوی بایي خـان د کلات حکمـران و، بـایي خان هم ووژل شو او شـاه عـالـم د علیخـان زوی د ملخي وراره او زوی یـې خوشحال خـان هم یـوڅه موده ریاست وکړ او د دې کورنۍ وروستي سړي د خوشحال خان زامن اشرفخان او الله یارخان دي، چي اشرفخان د اعلیحضرت احمدشـاه بابـا لـه خـوا هـم د کـلات د ځمکو تـر غزنـي پوري پـه حکومت ټاکل شوی و او د هند په لومړۍ حمله کښي لـه احمدشاه بابا سره ملګری و او د تیمورشاه په زمانه کښي د اشرفخان زوی اموخان هم د غلجیانو په مشري مقرر شوی و او دغي کورنـۍ د امیر عبدالرحمن خان تر عصره پوري هم اقتدار درلود.

(د پټې خزانې تعلیقـات، ۲۵۸ مـخ. حیـات افغـاني ۲۶۱، ۲۶۴ مخونـه. خورشیدجهان ۲۱۷ مخ).

کښي تر خبرو ، سلا او مشورې وروسته يې د ( ګرماو ) سيمه او د کـلات پـل (سـنګي ) د دواړو خواوو ترمنځ فاصل حد و ټاکه او په دې وسـيله يــې پـه مدبرانه ډول د هغه نفاق او وينو تويولو مخه ونيوله، چې د پرديو خلکـو پـه لمسون دهغو دپېښېدو احتمال موجود و[1] له دې يادوني نه موخه د هوتـک بابا له کورنۍ څخه توخي کورنۍ ته د غلجيانو د قومي رياست نقلـېدل وو، چې سلطان ملخي توخي په دې جرګه کښي د غلجيانو د رئيـس پـه تـوګه ګډون کړی‌و او سلطان محمد هم ليکي چې ما په خپله د سر پـه سـترګو د سلطان ملخي له اولادې سره د اورنــګزېب هغـه فرمـان ليدلــی، چــې د سلطان ملخي رياست يې په رسميت پېژندلی و[2] خو کلـه چــې د مـيرويس پلار ښالـم خان د سلطان ملخي په زومولي ومنل شو، تر لږې مودې وروسته بيا د غلجيانو د قبيلو مشرتوب څه چې تر يو څه مودې وروسته د کندهــار د ټولو افغانانو مشري په هوتکي کورنۍ پوري مربوط، د هغې په برخه او ملي نهضت پيل شو.

## ښـالـم خـان:

شاه عالـم خان چې په( ښالـم ) مشهوره دی، دميرويس پلار او لـه هوتکي مشرانو او مشهورو سترو کسانو څخه و، چې په قبيلـه کـښي يــې پـه ځوانمردۍ ، مېرانې، سخاوت او نېکۍ سره شهرت درلود او لــه دې کبلـه د هوتکيانو يوه څـانـګه ښاخ د (ښالـم خېلو ) په نوم وبلــل شــوه، د کندهـار افغانانو به  په ډرنه سترګه ورته کتل، څرنګه چـــې اوس هـم پـه کندهـارۍ محاوره کښي کوم افغان غواړي خان ته په يو امتياز قـايل شـي، نـو مقابل لوري ته وايي ( ته نو کوم ښالـم خېل يې ؟!) يعنې ته خـو ښالـم خـېل نـه يې، مقصد که چيري واى، نو بيا به دي د امتياز حق درلود.

له همدې کبله د غلجيانو قبيلو مشهور رئيس سلطان ملخي توخـي نوموړی پخپله زوملۍ ومانه او خپله عالمه لـور يـې (چـې د هغـې د حـال شـرحه بـه ددې کتـاب پــه دويمــه برخــه کــښي د مـيرويس مــور تــر

(۱) (تاريخ سلطاني) ۶۰مخ. کابل کالنۍ د۱۳۲۴-۱۳۲۵ ل کال. ۲۰۷مخ. ميرويس نيکه، ۱۸مخ.

(۲) تاريخ سلطاني ۶۰ مخ. حيات افغاني ليکي چې: دغه فرمان د ۱۰۲۲ ه کال د دويمي خور په نهمه نېټه ليکل شوی و. ( د حيات ۲۶۱ مخ ) .

سرلیک لاندي ولولئ)، د هغه ور وګڼله او په همدې خپلوي سره د هوتکیانو او توخیانو د دوو مهمو قبیلو دوستي ټینګه شوه.

د ښالم خان د زېږېدني او مړیني نېټه څرګنده نه ده او نه دده د ژوندانه د جزئیاتو په باب څه معلومات شته؛ بېله دې چې ښالم خان د سلطان ملخي توخي له لور څخه څلور زامن درلودل چې تر ټولو مشر یې(میرویس خان) و، چې په ( حاجي میرخان ) مشهوره و او د هوتکیانو د دورې د ملي غورځنګ مؤسس دی، درې نور زامن یې دا دي: ۱- عبدالعزیز، چې تر میرویس وروسته پاچایي ته ورسېد. ۲- یحیٰی خان۳- عبدالقادرخان.[1]

(۱) پټه خزانه ۱۷۷ مخ. حیات افغاني، ۲۵۷ مخ. خورشیدجهان، ۲۱۰ مخ. میرویس نیکه، ۲۵ مخ.

# دویمه برخه
# د میرویس دوره

## میرویس څوک و؟:

میرویس په (حاجي میرخان نیکه) مشهور او د ښالم خان زوی، ښالم خان دکرم خان زوی او دی د مند زوی او مند د عمر زوی دی او عمر د جلال الدین زوی او دی د قطب زوی دی او قطب د اسحاق او دی دحسین زوی دی او حسین د ملکیار او دی د هوتک زوی دی او هوتک د بارو او دی دتوران زوی او هغه د غلجي زوی دی[1] او میرویس د افغانستان له ملي مشرانو څخه و، چې د افغانستان د دوولسمې هجري پېړۍ ملي نهضت دده د لوړ همت، ټینګې ارادې، حساسو مغزو او معقولو تدبیرونو زېږنده دی.

ده، د ملیت هغه وړانګې چې ورکېدو ته نژدې وې، بېرته له سره تازه اوبلې کړې، خپل قوم او هېواد یې د پردیو له محکومیت او اسارت څخه خلاص کړ او بیا یې په افغانستان کې د ملي حکومت بنسټ ټینګ کړ.

د دې لپاره چې دی ښه وپېژنو، نو غوره دا ده چې د ده پر ژوندانه او د ژوندانه پر پېښو، سیاسي او ملي فعالیتونو باندې خبر شو، نو دغه دی تر هغه ځایه چې تاریخي اسناد او ماخذونه لاربښوونه او مرسته کوي، د دې نومیالي افغاني مېړه پر پېژندګلوۍ پیلېږي:

## د میرویس مور:

د میرویس مور (نازو) نومېده، نازو د سلطان ملخي توخي لور وه، (چې دمخه یې یادونه وشوه) په( ۱۰٦۱ ه )کال په هغه لوړه او ښکلې کلا کښې چې د پلار له خوا یې دکلات او کندهار ترمنځ د تازي رباط[2]

---

(۱) خورشیدجهان. ۲۱۰ مخ. حیات افغاني۲۵٦-۲۵۷مخونه. دآ ریانا مجلې څلورم کال د اوومې ګڼې ۳۸ مخ.

(۲) تازي رباط: د کلات په شمال شرق کښې د کابل پر لاره دویم رباط دی.

په جنوب کښي جوړه شــوې وه، زېږېدلــې ده. وروسته تــردې چــي يــې د کوچنیتوب دوره تېره کړه، پلار يې هغه تر ښووني او روزني لانــدي ونیولــه، نازو هم د خپل فطري ذوق او ذاتي استعداد په وجــه د علـم پــه زده کـړه کښي کوښښ وکړ او له لوړو عالمانو څخه يې تحصیل وکړ، لیک - لوست يــې په بشپړ ډول یاد کړل، په تېره بیا پــه پښتــو ادب کـښي يــې ژوري کتنــي او مطالعې وکړې، تردې چي په خپله هم د خپل عصــر لــه ښو شـاعرانو څخـه شوه او یو دېوان يې درلود چي دوه زره بیتونه يــې لــرل، د دې د شـعرونو بېلګه به د همدې کتاب په وروستۍ برخه کښي په هغه ځای کـــښي چــي د هوتکي دورې پر عالمانو او شاعرانو بحث کېږي، راشي.

کله چي يې پلار (سلطان ملخي) ( سورغر ) ته نژدې په یوه جــګړه کښي په شهادت ورسېد، نو د کور د کارونو اداره او د کورنۍ سرپرستي ټوله د دې پر غاړه پرېوتله؛ په تــېره بیــا پــه هغــه زمانــه کــښي چــي د نــازو ورور حاجي عادل هم له هغې څخه بېل شو او د خپل پلار د انتقام اخیســتلو پــه موخه جګړې ته لاړ، نو د کلا او کلي ساتنه نازو ته پاتې شوه او دې هــم د یو زړور افغان مېړه په شان توره په ملا پوري وتړله او لــه يــوې ډلي افغانــانو سره يــې کلا او کلی د پردیو له چپاوونو څخه وساتل[1].

سربېره پر دې مېړمن نازو د نورو افغاني ښځو اومېرمنو په شان پــه مېلمه پالنه او غریبــپالنه کې پوره شــهرت ومونــد، هــر وخــت بــه د مســافرو قافلې دنازو د کلا په مخکښي کښته کېدلې، ډوډۍ، جــامې او دلاري تــوښه به ورکول کــېدل؛ تــر دې چــي د محمــد هوتـک پــه قــول د نــازو د ســخا او بخشش آوازه له خیبره تر کوسان[2] پوري خپره شوه[3].

نازو، هغه وخت چي پلار يې لا ژوندی و، د ښالـم خان په نکـــاح کــښي راغلې وه، خدای ﷻ پاک ورتــه څلــور زامــن ورکــړل، چــي پــه ټولــو کــښي

---

(۱) پټه خزانه، ۱۷۵ مخ.

(۲) کوسان : د هرات لوېديزي خوا ته د هریرود سیند پر غاړه پر ـته سیمه ده او اوس د غوریانو په حکومت پوري مربوطه ده. د پټي خزانې د ۱۷۷ مخ لمنلیك.

(۳) پټه خزانه، ۱۷۷مخ.

يې مشر نوميالی او ملي قايد ميرويس خان و او د پټې خزانې د مؤلف په قول مېرمن نازو به هيڅکله خپل زوی ته له اوداسه او پاکی پرته تی (شيدې) نه ورکولې.(۱) کله چې ميرويس وزېږېد، مېرمن نازو خوب وليد چې حضرت بېټ نيکه(۲) ورته وويل: " زما لورې! دغه زوی دې ښه وروزه، چې لوی شي سترسترکارونه به وکړي، په روزنه کښي يې غفلت او بې پروايي و نه کړې، د ده له اولادې او نسل څخه به ښه ښه پاچايان منځته راشي، چې دين ته به قوت او ترقي ورکړي، ستا دغه زوی به د بيت الله شريف په زيارت هم مشرف شي، د ده په روزنه او ښوونه کښي ډېره پاملرنه او دقت وکړه، د هغه پر غاړه لوی کارونه اچول شوي دي".(۳) مېرمن نازو تر دې خوب ليدو وروسته د مورولی پر مهربانی سربېره يې په ځان کښي له دې زوی سره ځانګړې لېوالتيا او مينه حس کړه او د ده په روزنه کښي يې ډېر دقت او پاملرنه کوله، له شېږکلنی څخه يې زده کړې ته کښېناوه او په يو کال کښي يې د دين فرايض ور زده کړل او تل به يې ورته ويل چې: "زما زويه! د بېټ نيکه له قوله ستا په مخکښي لوی - لوی کارونه پراته دي، چې بايد هغه ترسره کړې. چې لوی او غټ شوې د خدای تعالیﷻ په عبادت او د خلکو په خدمت بوخت اوسه، پاک خدایﷻ ددې لپاره پيدا کړې چې لوی لوی کارونه وکړې او د پاک اللهﷻ مخلوق ستا د خدمت په وجه آرام او هوسا وي".(۴) کله چې يې په (۱۱۱۹ هـ) کال خپل قوم او هېواد له تېري کوونکو څخه وژغوره. د شکر سجده

(۱) پټه خزانه، ۱۷۸ مخ.

(۲) بېټ نيکه : د افغانانو ستر نيکه دی، چې بېټني قبيله ده ته منسوبه ده. د افغاني اسماءالرجالو تاريخ کښونکي د افغانانو ډېري طايفې دغه سترنيکه ته منسوبوي او دی د سړبن او غرغښت ورور بولي، د ده د ژوندانه نېټه يې له (۳۰۰ نه تر ۴۰۰ هـ) کاله پورې اټکل کړې ده او په سلېمان غره کښي يې چې افغانان ورته (دکسي غر) وايي، ژوند کاوه او د ده ډېر کرامتونه يادوي، په پښتو کښي يې تصوفي شعرونه هم درلودل. (د پښتانه شعراء، لومړي ټوک، ۴۵ مخ دې وکتل شي).

(۳)،(۴) پټه خزانه، ۱۷۷او ۱۷۸ مخونه.

يې پرخای کړه او ویې ویل: "خدایه! دا هماغه کار و، چې مور مې راته توصیه کړې وه، دغه ستا د بندګانو خدمت و چې ترسره مې کړ".[۱]

## د میرویس د زېږېدنې نېټه:

په غوڅ ډول څرګند نه دی، خو که چیري له اټکل څخه کار واخلو او اعتبار ورکړو. نو د میرویس د مور او د لومړي زوی د زېږېدنې له نېټې څخه د میرویس د زېږېدني نېټه اټکلولای شو او هغه په غالب ګومان (۱۰۸۴ هـ) کال بللای شو، په دې توګه: د میرویس مور په (۱۰٦۱ ه) کال زېږېدلې ده او لکه څنګه چې په افغانانو کښې معموله ده، د خانانو لوڼې عموماً د پلار په کورونو کښې ډېره موده کښېني، نو که چیري د مېرمن نازو واده په ۲۲ کلنۍ کښې فرض کړو، نو د میرویس زېږېدنه په (۱۰۸۴ ه) کال یعنې تر واده یو کال وروسته کېږي، چې دغه اټکل د هغه وخت د پښتو لیکونکو او تاریخ کښونکو له قول سره چې وایي: د میرویس لومړنی زوی شاه محمود د میرویس د مړیني په (۱۱۲۷ هـ) کال اتلس کلن و.[۲] هم ناسموالی او تناقض نه لري. خو څرنګه چې د کتاب لیکوال د افغان-پارس جنګ په هغه وخت کښې لیکلي چې د میرویس وروستۍ ناروغي او مړینه یادوي، چې "د ده جسماني قواوي د عمر د ډېروالي له کبله تحلیل شوي"[۳] له دې اټکل سره سر نه خوري.

## واده ((ازدواج)):

د میرویس پلار د دولتخان سدوزي په زمانه کښې په ښارصفا کښې اوسېده؛ په دې ځای کښې یوه پېغله نجلۍ وه، چې (خانزاده) نومېدله او پلار یې جعفر خان و، چې د سدوزي

---

(۱) پټه خزانه، ۱۷۷-۱۷۸ مخونه.

(۲) د افغانستان تاریخ، میلیسن، د پښتو ژباړې ۲۱۷ مخ. ترکتازان هند، څلورم ټوک، ۱۴۷ مخ. تاریخ ایران، سر جان مالکم، ۱۹۹ مخ.

(۳) جنګ افغان و پارس، ۵۷ او ۵۸ مخونه.

کامراني[۱] قبیلې له بارسوخو خانانو څخه شمېرل کېده، کله چې جعفرخان مړ شو، هغې نجلۍ له خپلې مور پرته چې (درخو) نومېدله، هیڅ وارث او سرپرست نه درلود، له دې کبله د نجلۍ مور د دې لپاره چې له یوې خوا یې د خپلې کورنۍ قومي اقتدار ساتلی وي او له بلې خوا د پردیو له تېري او تجاوز څخه خوندي وي، نو میرویس یې چې یو اقتدار لرونکی ځوان او یو ځیرک او هوښیار زلمی و خپل زوموليي ته را وباله، میرویس هم ومنله او د جعفرخان سدوزي (خانزاده) نومي لور یې ورته په نکاح کړه[۲] سربېره پردې چې د جعفرخان ټولي کورنۍ او قومي کارونه په میرویس پوري مربوط شول او د سدوزي طایفې صمیمي دوست او محرم هم وګرځېد، نو په دغه وسیله یې د ابدالي او غلجي طایفو ترمنځ د یووالي اړیکې ټینګ کړل، کرار کرار میرویس د خپل ذکاوت اوښه لطف له مخې د سدوزیو په زړونو کښې هم د غلجیانو په شان ګرانښت او محبوبیت پیدا کړ او له ده څخه به یې په زیاترو ولسي چارو کښې د مشاور په توګه کار اخیست.

## کسب او کار:

میرویس پخوا له دې چې د سیاست ډګر ته راننوزي، تجارت او سوداګري یې کوله او د یو ځیرک سوداګر په نامه مشهوره و، د ده تجارتي کاروانونو به تل هندوستان ته تګ - راتګ درلود[۳] میلیسون لیکي چې میرویس ډېر عالم، سخي او لوی شتمن و.[۴]

---

(۱) کامرانخان د اعلیحضرت احمدشاه بابا له نیکه ګانو څخه و، چې په (۱۰۳۸) هجري کال کښې یې یو کتاب د (کلید کامراني) په نامه په پښتو لیکلی دی. د کامران خان پلار سدوخان نومېده، چې د هرات او ملتان سدوزي قبیله ده ته منسوبه ده، د سدوخان پلار عمرخان د صفویانو په زمانه کښې دکندهار مرزبان (پوله ساتونکی) و، سدوخان پنځه زامن درلودل چې: خواجه خضرخان، مودود (معدودخان) زعفران خان کامرانخان او بهادرخان وو. کامران د پادشاه نامې دمولف عبدالحمید په قول د(۱۰۵۰ه کال په لومړي خور) په ډیلي کښې ومړ.) تاریخ سلطاني، ۵۹، ۶۷ ، ۲۵۰ او ۲۵۱ مخونه. د پادشاه نامې دویم ټوک ۱۵۱ مخ. پټه خزانه، ۱۵۱ مخ.

(۲) تاریخ سلطاني، ۷۰-۷۱ مخونه.

(۳) جنګ افغان و پارس، په انګرېزي ژبه، فورداسحق، ۳۴ مخ.

(۴) د میلیسن تاریخ ۱۹۷ مخ.

## ځانګړي صفتونه:

ځرنګه چي تاریخ کښونکي لیکي: میرویس نرمه طبع، متین فکر، صایبه رایه، او لوړ اخلاق درلود، په اطرافو کښي، په سخاوت مشهوره و.[1] خو، تر ټولو مهم او ښه شی چي د ریاست پر وخت د هغه په ښه راغی د هغه فصیحه ژبه او نیوونکي وینا وه. ده د خپل نطق په قوت وکړای شول د اصفهان درباریان خپل پلویان کړي او د حجاز له عالمانو ځخه له خپلي هیلي سره سم فتوی واخلي او هم افغان ملت له لوی ځخه تر کوچني پوري ځانتیریدني او قرباني ته چمتو کړي.

## د افغانانو په نزد دده مقام:

وروسته تر دې چي میرویس د سدوزي قبیلې د خپلوی مزی وتاړه، نو دافغانانو په نزد، د ده مقام او منزلت لا پسي لوړ شو. ځکه چي له یوې خوا د غلجیانو مشرتوب په ده پوري اړه درلوده او له بلي خوا ابدالیانو د هغي خپلوی په واسطه چي له میرویس سره یې پیدا کړې وه، د ده درناوی او عزت کاوه. په تیره بیا له هغه وخته چي دولتخان ابدالي[2] د خپل زوی نظرمحمد خان او نوکر فقیر نومي سړي

---

(۱) تتمة البیان، پارسي ژباړه، کابل چاپ، ۷۵ مخ. تاریخ ایران، سرجان مالکم۱۹۷مخ. تاریخ سلطاني. ۷۱ مخ.

(۲) دولتخان د سرمست خان زوی دی او دی د شیرخان زوی دی او دی د خواجه خضر (د کامران خان د ورور) زوی او خواجه خضر دمشهور سدوخان (چي د سدوزیو قبیله ور ته منسوبه ده) زوی دی او سدوخان د کندهار له افغانو خپلواکواو مستقلو رئیسانو ځخه و، چي د اعلیحضرت احمدشاه بابا رښتینی نیکه دی. کله چي یې پلار مړ شو. د دولتخان عمر د ریاست نه و، له دې کبله حیات سلطان چي په فیروزخان مشهور او د سرمست خان تره و، د ریاست واګي پخپل لاس کښي ونیولې، خو له ده نه د اصفهان د صفویانو په پلوي کارونه ولیدل شول، چي قوم په دې واسطه ورځخه وګرځېد او د ده پرځای یې دولتخان چي نوی بلوغ ته رسېدلی و، ریاست ته وټاکه. دولتخان په کندهار کښي له صفوي حاکم سره د جګړې اعلان وکړ او صفوي حاکم، فرخ نومي سړی له ډېر لښکر سره د هغه مقابلې ته ولېږه، خو دولتخان، فرخ وواژه او د ده لښکرته یې ماتې ورکړه، تردې چي بیګلربیګي په خپله اړ شو چي ددولتخان مقابلې ته راووزي. دولتخان هغه هم ماتې ته مجبور کړ. ←

سره د ګرګین په امر شهید شو، د قوم د امید ستر ګي میرویس ته واوښتلې په تېره بیا چې د دولتخان زوی محمد زمانخان تحتُ الحفظ کرمان ته ولېږل شو او د دولتخان بل زوی رستمخان هم د کندهار د جبري حاکم ګرګین له لاسه شهید شو، په افغانانو کښي له میرویس پرته بـل داسـي څوک پـاتي نـه شو، چي قوم ورباندي راغونډ شي؛ نو له دې کبلـه د ابدالیـانو او غلجیـانو ریاست ده ته وسپارل شو او سربېره پردې د کندهار د (کلانـتري) منصب[1] چي یوستر منصب و، د ده په برخه شو.[2]

## ګرګین او کندهار ته د ده راتګ:

ګرګین، چـي څو کـرښي پخـوا مـو د ده نـوم یـاد کـړ، دده اصلـي نـوم( وختنـګ) و او پخـوا لـه دې چـي دبېګـلربېګي پـه تــوګه کندهـار تـه ولـېږل شــي، پـه ګرجسـتان کـښي د صفـوي‌پـاچـا لـه

←— حیات سلطان چي د دولتخان بهادري او مېړانه ولیده، نو د ریاست له دعوې نه تېر شواو ملتـان تـه لاړ او دولتخـان د قوم مستقل رئیـس شواو تر هغـه وختـه پوري رئیـس و، چي صفوي حکومت، ظالم ګرګین د کندهار د چارو په سمبالولو مـامور کړ. ګرګیـن هم پـه مقابلـه کښي خان ناکامه ولید، نو د شیادي او تلبیس له لاري مخکـي راغـی او د دولتخـان، عزتخـان او اتلخان ترمنځ یـې چي دغـه دوه تنه لـه کم نفوذو خوانینو څخـه وو، د نفاق او عـداوت تخم وشینده او پـه قـوم کښي یې پـرې جنبې پیدا کړې، تر دې چي یـوه شـپه د ګرګیـن لښـکـر د عزتخان او اتل خان په مرسته او لارښوونه په ښارصفا کښي ناڅاپـه د دولتخـان پـر کلا چپـاو وروړ او دولتخان یې له خپل زوی نظرمحمد او فقیر نومي نوکر سره د ګرګین په امر ووژل، که څه هم د دولتخان تر وژلو وروسته د قوم مشـري دده زوی رستـمخان چي د ده بـل ورور محمـد زمانخان د اعلیحضرت احمدشـاه بابا پلار د یرغمل پـه ډول د ګرګیـن لـه خوا کرمـان تـه لـېږل شوی و، په لاس کښي ونیوله، خو کله چي ګرګین پوه شو چي دی هم نه غـواړي د متجـاوزینو او پردیو خلکو ترجُغ لاندي راشي، په تېره بیا چي بلوڅي طایفې د رستم خان په لمسون او تحریک د ګرګین پرخلاف پورته شوې، هغه یې هـم بندي کړ او هلتـه یـې وواژه، د رستـمخان د ریاست موده څلور کاله وه، له هغه وختـه را وروستـه د میرویس تر ملي قیـام پوري د کندهـار افغـانـانو کوم غوره رئیس نه درلود:

(تاریخ سلطـاني، ۶۷ مخ. حیـات افغـاني ۲۶ مخ. کـابل کالنـی، د ۱۳۳۴ کـال د کابل ۲۵ مه ګڼه ۲۰۸ مخ.)

(۱) د هغه وخت کلا نتري د نننی ښاروالی ریاست په اندول او یا تر دې لوړه وه.

(۲) سرجان مالکم، ۱۹۷ مخ. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک. ۴۶ مخ.

فرمان څخه سرغړونه کړې وه، چې په پای کښې ونیول شو او کله چې یې اسلام دین ومانه، نو سلطان حسین صفوي د ده له ګناه څخه تېر شو او د (شهنوازخان) لقب یې ورکړ[۱].

خینو تاریخ کښونکو تر اسلام راوړلو مخکې د ګرګین دین (عیسایي) لیکلی دی[۲] او ځینو (ترسا) بللی[۳] او ځینو هم (رافضي) ښودلی دی[۴].

په هر صورت، ګرګین یو عصبي، سخت مزاجه، بدچلنده، ظالم، سختزړی او سختګیره سړی و، دی د دې بدچلندۍ او بدخویۍ له مخې د اصفهان دربار له خوا د هغو افغانانو د تباهۍ او له منځه وړلو لپاره چې نه یې غوښتل د پردیو تر قید لاندې راشي او د نورو محکوم شي، وټاکل شو او د شلو زرو عسکرو او د ګرجستان له لویي ډلې خلکو سره د کندهار د بېګلربیګي په نامه وټاکل شو[۵] او بل مقصد دا و چې ګرګین د اصفهان دربار کندهار ته ولېږي او د هند د مغلو پروړاندې یو ټینګ بند جوړ کړي. هماغه وو چې ګرګین په ۱۷۰۲ ع کال کښې کندهار ته راغی[۶] او کله چې ور ورسېد، نو په دې سوچ کې و چې په شدت او سختګیرۍ سره به وکړای شي چې سخت‌سره افغانان ارام او محکوم کړي، نو له خلکو سره یې ډېر توند چلند وکړ، په ظلمونو یې لاس پوري کړ او د( سرجان مالکم ) په وینا: کینه ګري یې خپله دنده وګرځوله او د ریاست قوام او ټینګوالی یې د خپل سیاست په بهیر کښې وپېژانده، لښکر ته یې امر وکړ چې د خلکو پر مالونو، وینو او ناموسونو په تېري، تجاوز او ظلم لاس پوري کړي او د دغه کلام ( *ان الملوک اذا دخلوا قریة*) مصداق پیدا شو، هر چیري چې معزز او مخور سړی و خوار او ذلیل شو او هر چیري چې امیر و هغه اسیر ... [۷]

---

(۱) زندګاني نادر شاه، ۹ مخ .
(۲) سرجان مالکم، ۱۹۶ مخ. تتمة البیان پارسي ژباړه، ۷۳ مخ. میلیسن ۱۹۶ مخ.
(۳) داستان ترکتازان هند ، ۱۴۴ مخ، (ځلورم کاخ) .
(۴) پټه خزانه، ۹۵ مخ .
(۵) سرجان مالکم، ۱۹۶ مخ. تتمة البیان ۷۳ او ۷۴ مخونه .
(۶) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، ۴۴ مخ.
(۷) سرجان مالکم، ۱۹۶ مخ .

خپلو عسکرو ته یې امر وکړ چي په ډېره بېرحمۍ او سختزړۍ سره پر کلیو باندي چپاوونه وکړي. هغوی هم د خلکو مالونه لوټ او تالا کړل. کورونو ته یې اور واچاوه او کوچنیان یې ووژل. د ښځو بې عفتي یې وکړه، غلې یې چور او کښتونه یې تباه او برباد کړل(۱) دومره ظلمونه او تېري یې وکړل، چي نور د صبر او زغم وړ نه وو، د کندهار خلکو د ګرګین له دغو ظلمونو او سفاکیو څخه د قوم رئیس او د کندهار کلانتر(میرویس) ته شکایت او له هغه څخه یې هیله وکړه.(پخوا مو وویل هغه وخت په کندهار کښي له میرویس پرته بل څوک نه و، چي قوم او ولس له ظلمونو څخه وژغوري) نو یوازي میرویس و، چي د سرجان مالکم په وینا "د نسب لوړتیا او د حسب متانت پکښي راټول وو، د نسب له مخي د ستري قبیلې مشر او د خلکو په نظر او زړونو کښي یې د ښه چلند، خوږې ژبې، نرمي طبعې او د سخا په وجه پوره محبوبیت او ګرانښت درلود"(۲)

ده هم د قوم ږغ ته غوږ کښېښوده او هرکلی یې وکړ او د قوم د ژغورني او ازادۍ او د ظلمونو د له منځه وړلو لپاره یې د مېړاني ملا وتړله، خو څرنګه چي یو ډېر سیاستمدار او څیرک سړی و، نو ویې نه غوښتل چي د زمیني برابرولو او د وړ تدبیرونو تر نیولو وړاندي په ښکاره ډول پر عملي هڅو لاس پوري کړي، له دې کبله یې لومړی د ملي مشرانو او وکیلانو یو هیئت له یوه لیک سره چي په هغه کښي دګرګین ظلمونه او تېري او د خلکو د ازادۍ غوښتنې افکار او احساسات بیان شوي وو، په ۱۷۰۶م کال د اصفهان دربار ته ولېږه او هغه کس چي تر ټولو مخکښ یې دغه لیک لاسلیک کړی و، خپله میرویس و.(۳) دغه هیئت چي اصفهان ته ورسېد، ډېره هڅه یې وکړه چي د اصفهان پاچا ته خان ورسوي، خو د ګرګین د پلویانو د ډېري مداخلې په وجه او د

---

(۱) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۴۴ مخ.
(۲) تاریخ ایران، سرجان مالکم ۱۹۷ مخ.
(۳) د افغانستان تاریخ، میلیسن ۱۹۷ مخ، د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک ۴۵ مخ، تتمة البیان، ۷۵ مخ.

پیره دارانو او دروازه چیانو د بندیز له کبله تر ډېري مودې د هیئت غړي د پاچا حضور ته پرې نه ښودل شول، چي تر ډېرو هڅو وروسته یې دحضور د ورتګ موقع وموندله، پاچا بیا د دوی خبرو ته غوږ ونه نیوه، د ګرګین دوستانو پاچا ته وویل: دا د باغیانو لیک دی، د اعتبار او ارزښت وړ نه دی او دا یې هم وویل چي: دغه سرکښان غواړي په جعلي شکایتونو، تګی اودروغو سره د بېګلربیګي له ضبط او ربط څخه ووزي ، نافرماني او سرغړونه وکړي.[1]

له دې کبله یې له صفوي دربار څخه له سختي وینا، ګواښونو او عتاب پرته بل ځواب وا نه ورېد، نو ناچاره په ډېره نهیلی بېرته کندهار ته راغلل او د موضوع څرنګوالی یې قوم ته وړاندي کړ.

ګرګین چي ددې هیئت له تګ څخه خبر شو؛ له یوې خوا یې د افغانانو کرکه، بدبیني او نارضایي لیده، له بلي خوا یې لیدل چي د میرویس ملي نفوذ او اقتدار ورځ په ورځ زیاتېږي، نو د میرویس د له منځه وړلو پرته یې بله چاره ونه لیدله او دا یې هم نه شول کولای چي په کندهار کښي یې له منځه یوسي، نو له دې کبله یې هغه په یوه پلمه تومتي کړ او دخپلو نورو مقتدرو ملګرو تر څارنې او ساتنې لاندې یې اصفهان ته ولېږه[2] خو د افغان - پارس د جګړې نومي کتاب لیکوال لیکي: ګرګین دمیرویس له واک او نفوذ څخه وېرېده او په ظاهره یې د بندي په نوم ونه باله، بلکي بالعکس یې له ده سره د وفادارۍ او رښتیا ویلو سوګند وکړ او په ډېرو نرمو او تېرویستونکو الفاظو او خوږه ژبه یې ورسره خبري وکړې او وېې ویل چي ته یې له خپلو ملګرو سره داصفهان دربار ته غوښتی یې، خو په پټه یې خو تنه وټاکل چي په لاره کښي دی تر څارني او نظارت لاندي ونیسي. په هر حال، میرویس په (۱۱۱۱ هـ) کال

(۱) سرجان مالکم، ۱۹۷مخ. دسید جمال الدین افغان تتمة البیان، کابل چاپ، ۷۴ مخ.
(۲) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۱۹۷مخ. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۴۷مخ. سرجان مالکم، ۱۹۷ مخ.

په داسي حال کښي له کندهاره روان شو چي ګرګین د ده د بندي کولو لیک له ده سره یوځای صفوي پاچا ته ولېږه او په لیک کښي یې د ده ملي اقتدار او نفوذ یاد کړ او ویې لیکل چي:
( د کندهار ارامي د دې سړي په بند پوري تړلې ده ... )[1]

## میرویس کله دربار ته، ته؟

کله چي میرویس د خپل قوم او خاوري د ازادۍ لپاره هڅې کولې، نو په اصفهان کښي د صفوي دورې وروستي پاچا سلطان حسین صفوي[2] حکومت درلود، دی د شاه سلیمان ترمړیني وروسته په (۱۱۰٦ هـ ) کال د پاچايۍ پر تخت کښېناست، په ظاهره یو دیندوسته او ملاپاله سړی و، ستوري پېژندونکو او شیخانو ته یې ډېر ارزښت ورکاوه. د ایران تاریخ لیکوال (سرجان مالکم ) دغه پاچا داسي راپېژني: "سلطان حسین یو نرم طبیعته پاچا و او په ظاهره به یې تر ډېره حده د مذهب په چوکاټ کښي هڅه کوله، خو دده دغه ښېګڼي د ده د پلار تر عیبونو زیات د هېواد د خرابۍ سبب شوې. ملایان او سادات لوړو منصبونو ته ورسېدل او په هر ځای کښي به مدرسه وه او د حرم د حریم په شان ( من دخله کان امنا ) وګرځېدل، چا به چي هر بد کار او ناروا عمل ترسره کړ، ان پر نفس وژلو یې هم لاس پوري کړ، نو په هیڅ ځای

(۱) سرجان مالکم، ۱۹۷ مخ.
(۲) د صفوي پاچايانو د سرسلسله شاه اسمعیل صفوي و، چي په ۹۰۵ هـ کال په دیارلس کلنۍ کښي د شېروان له حاکم ( فرخ یسار) څخه د خپل پلار سلطان حیدر د وژل کېدو د غچ اخیستلو په موخه له خپلو ځینو پلویانو او مریدانو سره له ګېلانه روان شو او فرخ یسار یې له پښو وغورځاوه، ویل کېږي له هماغي ورځي څخه د صفوي حکومت بنسټ کېښودل شو او له دوو پېړیو (۹۰٦_۱۱۳۴ هجري ) زیاته موده د هغه اولادو حکومت وکړ او ددې لړۍ وروستی پاچا افغان ملي مشر چي د ده دربار ته،ته. سلطان حسین صفوي بن شاه سلیمان بن شاه عباس ثاني بن صفي بن شاه عباس ماضي صفوي و.
( روابط ادبي ایران و هند، علي اکبر شهابي، ۶۶-۶۸ مخونه، د خواندمیر روضة الصفا، اتم ټوک ).

کښې به يې ځای نه کېده، که مدرسې ته به يې پناه يووړه نو هغه به يې د امن ځای شو. دغه ټول ديوه سخت دريځي ملا محمدباقر مجلسي امر و، له دې جملې نه به د سلطان حسين د سلطنت په لومړيو شلو کلونو کښې د مدرسې ملايان د چارو مشاورين، د حرم سرای خواجه او د جمهور د دايرې مديران وو ..."[1]

انګليسي تاريخ ليکونکی سرپرسي سايکس دغه پاچا داسي راپېژني: سلطان حسين ښځي خوښوونکی، د کمزوري نفس خاوند او د مذهبي رياکاريو يوه مخلوطه خميره وه، په نتيجه کښې ملايانو او خواجه سرايانو د هېواد چاري په لاس کښې ونيولې او ټول خلک په خوارۍ او پستۍ کښې ډوب وو او د ځوانمردۍ او مېړاني روحيه يې له لاسه ورکړې وه[2].

د روضة الصفا ليکوال خواندمير د ده په هکله ليکي: "څرنګه چي سلطان حسين ميرزا شاهزاده او يو حليم، محجوب، سليم او محبوب سړی و، نو صفوي مشرانو په تېره بيا شاه قليخان خپل مصلحت د ده په ټاکلو کښې وليد او له ملي روغې جوړې ځخه يې سترګي پټې کړې، د پاچا نوم يې پر ده کښېښود او کارونه يې پخپل لاس کښې ونيول او شاه حسين يې د علماوو خبرو او د فرايضو او نوافلو متابعت ته وهڅاوه او پخپله يې په عيش و عشرت او د ښکلو ساقيانو په معاشرت پيل وکړ..." [3] وروسته بيا د سلطان حسين د دربارېانو وضعيت داسي بيانوي: "... پاچا به په فرائضو او نوافلو بوخت و او لاروهونکو به لاري وهلې او قافلې او کاروانونه به يې لوټ او تالا کول، توري په تيکو کښې زنګيني شوې. د چنګ اوازونه به اورېدل کېدل او د ساقيانو د پيالو وېش به ليدل کېده، يو به د ګلانو د رنګونو په باب خبري کولې او بل به ګمې او پېچلي زلفي اوکماني وروځي خوښولې او د شاهدانو غمزې به يې د تاتارو تر غشو رانيولې، شيرازي ځوانان تر ققفازي ځوانانو د درنښت وړ

(۱) تاريخ ايران، سرجان مالکم، ۱۹۴ مخ.
(۲) تاريخ مختصر ايران، ۶۵ مخ (پارسي ژباړه)
(۳) د خواند مير روضة الصفا، اتم ټوك، دسلطان حسين د پېښو بيان.

شول، د جنګ ډګرونه د ساعت تېريو په صحنو او تفريح ځايونو بدل شـول او د جنګ شپېلۍ د ميني په شپېليو بدلي شوې، د عيش و عشرت او ساعت تېريو محفلونو د جنګ او دفاع ترمحفلونو لوړوالی وموند."[1]

نورالله لارودي د نادرشاه د ژوندانه په کتاب کښي د سلطان حسين په هکله ليکي: "شاه سلطان حسين صفوي هغه بې زړه، بې ارادې او کهنه پرست (زوړپال) سړی و، چي د هېواد د کارونو سرچينه او اداره يې د يوې ډلي درباري، بدفکرو او پرديو کسانو په لاس ورکړه او پخلپه يې له ملي او پوخي کارونو څخه په څنګ، دحرم په چاردېوالي کي ژوند کاوه..."[2]

نو په دې ګډوډ وضعيت سره چي ان نه يې شول کولای خپل کور اداره کړي او د خپل هېواد د چارو د تنظيم قابليت يې هم نه درلود، بيا هم د اصفهان درباريانو د افغاني خاوري نيولو او پر ازادۍ مينو افغانانو د اسارت په هيله لاس و پښې وهلې او د خپل کور ابادي او ودانـي يې هېره کړه او د ګاونډ د کور خرابولو او ورانولو لپاره يې کوښښ کـاوه، چـي په پای کښي يې د خلکو پر کور د تېريو او تجاوزونو په نتيجـه کـښي خپـل کورونه هم له لاسه ور کړل.

## ميرويس داصفهان په دربار کښي[3]

کله چي ميرويس اصفهان تـه ورسېد، دګرګين د ليک لـه کبلـه يې نوموړی يـو قـوي ګارد تـه وسپاره، چـي تـر سختې څارنـي لانـدي يـې ونيسـي، ميرويس پـه دې چلنـد سره پـه انـدېښنـه کـښي شـو، پـه تـېره بيـا چـي وايـې ورېدل د سـلطان حسـين صفـوي کابينـه دده پـه حـق کـښي ښه نظريـه نـه لـري. خـو بيّـا هـم تـرڅو ورځو

(۱) د خواندمير روضة الصفا، اتم ټوك د سلطان حسين د پېښنو بيان.
(۲) د نادر شاه ژوندون، ۷ مخ.
(۳) هغه ماخذ چي د اصفهان د دربار وضعيت په تفصيل سره بيانوي او په دغه ځای کښي ورڅخه استفاده شوې ده انګليسي کتاب دی چي له پارس سره د افغانانو جګړه نوموېږي او د مطبوعاتو رياست په کتابتون کي شته، له ۳۴ مخ نـه تر ۳۷ مخ پوري، د دغه کتاب انګليسي نوم (AfghanWar With Persa) دی.

وروسته یې وکړای شول چــې لـه زندانـه اعتمادالدولـه تـه چــې د ګرګین مخالف و او میرویس د ده له مخالفت څخه پخوا خبر و، یو پیغـام ولـېږي او دیو ساعت ملاقات اجازه وغواړي اعتماد الدوله هــم د دې لپـاره چــې پـه دربـار کـښې د ګرګین او دده د ملـګرو موقعیـت ضعیـف، حقـیر او مـتزلزل کړي، د میرویس ملاقات او موجودیــت یــې غنیمـت وبالـه او ده تـه یـې د ملاقات بلنه ورکړه. میرویس د ملاقات پر وخت هغه قیمتي سوغاتونه چي له ځان ســـره یـــې وړي وو، اعتمـــاد الدولـــه تـــه وړانـــدي کـــړل، وروسته تر هغه یې د اعتمادالدوله په اجازه او اشاره د کابینې لـه نـورو غـړو سره هم چي د اعتمادالدوله په ډله کښي وو، وکتل او د مراتبو، منصبونـو او درجو له مخې یې هر یوه ته د تحفې په نوم د یاد وړ ســوغاتونه ورکـړل او په همغو ورځو کښي یې له دېوان بیګي سره هم وکتل اود قیمتــي ســوغات په ورکولو سره یې هغه هم نرم کړ او ددغو ملاقاتونو په وجه د ګارد ســخته څارنه او فشار هم کرار کرار کم شول او میرویس کولای شول چي دننه پــه اصفهان کښي هر ځای وغواړي هلته لاړ شي، ان رسمي دعوتونو ته به هــم بلل کېده.

یوه ورځ یې واورېدل چي د اصفهان د دربار اراکین ســتر مجلـس کوي، نو ده دهغو دوستانو په واسطه چي د اصفــهان پــه دربـار کـښي یــې موندلي وو، وکړای شول په دې مجلس کي ګډون وکړي، کله چي مجلـس جوړ شو، د مجلس رئیس د خبرو په ترڅ کښي له میرویس څخه د ګرګین پــه هکله پوښتنه وکړه، میرویس که څه هم له ګرګین ســره د ځینـو اراکینـو لـه اختلاف څخه خبر و، خو ددې لپاره چي د ګرګین په باب دهغــوی نظریــې ځان ته ښې معلومې کړي، دتفصیلاتو له ورکولو څخــه یــې ځان وژغــوره او یــوازي یــې پــه لنــډه تــوګه همدومــره وویــل: ( دا رښتیـا ده هغـه وخــت چي د هند مغلـو پـه کندهـار کـښي د ګرګین د مقررېدلـو خـبر واورېد، مـا تـر ډېرلـو لومـړی د ده لـه قـوت څخـه کــار واخیســت او د ګــرګین لـــه مشــورې پرتـــه مـــې د کندهـــار پـــه ســـاتلو کـــښي کـــوښښ وکـــړ! او

په دې ترڅ کښې يې له صفوي حکومت سره د ګرګین وفاداري ياده کړه او ځو لنډې خبري يې وکړې.

په دې وخت کښې ديوان بېګي وخت غنيمت وګاڼه او د ګرګین په بد ويلو يې خوله پرانيستله او ويې ويل: "ګرګين ډېر فضول او سپک سړی دی، دی تر اوسه پوري پوه نه شو چې ميرويس خان د هغه ملګری او مرستيال دی، له ده سره يې ډېر ظالمانه چلند وکړ"[۱]

په دې وخت کښې د ګرګين د مخالفينو له خوا چې مشر يې اعتمادالدوله و، د ګرګين پرضد سختي ويناوي وشوې او مجلس پايته ورسېد.

بله ورځ ديوان بيګي ګرګين ته وليکل چې: "ته د سلو زرو تومانو ټولولو لياقت نه لرې"[۲] دا معلومه نه ده چې دغه سل زره تومان د کندهار ماليه وه او که کوم بل شی؟ اعتمادالدوله څو ورځي وروسته پخپل کورکښې يو مجلس جوړ کړ او ميرويس يې هم وباله ميرويس وروسته تر دې چې د مجلس له ټولو غړو سره روغبړ او ستړې مه شې وکړه، د اورېدونکو او ننداړچيانو په کتار کښې کښېناست، لږ وروسته صدراعظم ميرويس ته وويل: ستا په هکله له کندهاره يو ليک رارسېدلی، نو ځرنګه چې تا ددې خبرې وړ بولم، نو هيله درڅخه کوم چې ته پخپله د هغه ځای ليدلی حال بيان کړې.

مخکې له دې چې ميرويس څه ووايي اعتمادالدوله مخ ور واړاوه او ويې ويل: تاسو بايد له تعصب او هغو ظلمونو څخه چې ګرګين ستاسو په برخه کې کړي، کار وانه خلئ، بلکې د حقيقت او واقعيت له مخې توضيحات راکړئ او زه يقين لرم چې تاسو داسي شخص نه ياست چې ګرګين ليکلي....

ميرويس چې د دربار د اراکينو له دې ټولو دوه اړخوالي او ډلبازيو څخه ښه خبر و او په پټه خوله يې د هغو ننداره کوله، نو

(۱) (۲) جنګ افغان و پارس، ۳۵ مخ.

دا خبره یې ګټوره وبلله چې له حقیقت څخه پرده لیرې کړي او له زره نه
ووایي، ځکه چې دی پوهېده په کابینه کښې د ګرګین مخالفین ډېر دي او
د میرویس طرفداري به وکړي نو په دغه ترتیب یې پیل
وکړ او ویې ویل:

څرنګه چې مو د حقیقت پوښتنه کړې ده او زه چې یو افغان
سړی یم نو باید رښتیا ووایم، که چیرې ګرګین یو
څه موده نور هم په کندهار کې پاتې شي، د کندهار اندامونه او هډوکي
به داسې سره جلا او مات شي چې رغېدل، جوړېدل او درملنه به یې د
امکان له حده وتلی کار وي، ځکه چې دی لا تر اوسه پورې نه دی بریالی
شوی، چې خپل عسکر د حیا او عفت تر اداري او دسپلین لاندې راولي،
هغو کسانو ته هم چې هیڅ ډول مخالفت یې نه دی کړی، د ګرګین له خوا
سخت زیان او اذیت رسېدلی دی، د هغو مالونه او شتمني یې تالا او لوټ
کړي او د هغوی اولادونه یې له خپلو عسکرو سره ګرجستان ته لېږلي دي
ګرګین ډېر کوښښ کاوه چې د خپلو عسکرو د عیش و عشرت سببونه برابر
کړي، خو ما نه پرېښوده، نبه، هغه وخت چې یې ډېر عسکر برابر کړل او
زیاتي پیسې یې ټولې کړې، ایا د دغه خطر وېره به نه وي چې ډېر کسان د
هند له باچا سره یو او متحد شي! او که چیرې ممکنه شي نو دی به ورڅخه
سترګې پټې کړي، څه شی به ګرګین له دې موافقې څخه منع کړي؟ خو
پاچا ولي ونه غوښتل چې د سلطنتي کارونو د ترسره کولو لپاره د خپل دین
او مذهب لایق، کارپوه او تجربه کار وزیران وټاکي، د دې پر خلاف یې
داسې یو سړی ټاکلی دی، چې اوس یې نوی دین منلی دی؟ دا خبره تر
لمر څرګنده او روښانه ده، که چیرې دغه تیټ او فضول سړی وخت پیدا
کړي نو خامخا به د سلطنت د خرابۍ سببونه برابر کړي[1].

د میرویس په دې ځواب د دیوان بیګي ډله چې په زړه کښې د
ګرګین پلویان وو خپه شوه، خو اعتمادالدوله او دده ډله ډېره

(۱) جنګ افغان و پارس، ۳۶ مخ.

خوشحاله شوه او میرویس ته یې قول ورکړ، چي دی به د مخالفي ډلې په وړاندي تقویه او حمایه کړي.

تردې وروسته به میرویس ټولو رسمي مجلسونو ته بلل کېده او د اعتمادالدوله ډلې نه یوازي د پاچا په نزد د میرویس بېګناهي ثابته کړه، بلکي د ګرګین ظلمونه او خپلسری یې هم پاچا ته په تفصیل سره بیان کړلې او پاچا، میرویس له هر ډول قید او بندیز څخه ازاد کړ، د ډېرو تاریخ کښونکو په وینا که چیري په هغه وخت کښي میرویس غوښتي وای کولای یې شول کندهار ته بېرته راشي [1] خو ده یوازي د خپلې ازادۍ هیله نه درلوده، بلکي د خپل قوم او خاوري په ازادۍ پسي هم تېبده.له دې کبله یې لازمه وبلله چي یوڅه موده نوره هم په اصفهان کښي پاتي شي.

ځیني تاریخ کښونکي عقیده لري چي اصفهان ته دا د میرویس لومړنی سفر نه و، بلکي لکه چي د میرویس ملګری او همراز( رېدیخان مومند) پخپل کتاب ( محمود نامه )[2] کښي لیکي: دا د میرویس څلورم سفر و چي له ظلمونو او تجاوزونو څخه د ژغورنې او ازادۍ غوښتلو لپاره د اصفهان دربار ته، ته. لکه میرویس چي سلطان حسین صفوي ته پخپل خطاب کښي وایي:

ګرګ دي ایله کړ پر رمه سو شبان ... جور و ستم کاندي بېحد ګرګین خان
مور له طاقت نسته چي کړو به زیاتي ... بر پر ظلم د ظالم ارمني
دا څلورم وار دی چي راځم سلطانه ... عرض د ظالم له لاسه کړم سلطانه

---

(۱) سرجان مالکم، ۱۹۷ مخ. د پښتنو تاریخ لومړی ټوک، ۵۰ مخ. د افغانستان میلسن تاریخ.۱۹۸مخ.

(۲) رېدیخان مومند د محمود نامې په نامه یوکتاب په پښتو نظم کړی،چي د بیتونو شمېر یې څلورو زرو ته رسېږي او ذده د سترګو لیدلي ټولې پېښې پکښي دي، خو له بده مرغه دغه کتاب وروسته تر دې چي یې له اعلیحضرت شاه حسین هوتك څخه زرطلاوي انعام واخیست، ورك شوی، یوازي یې یوه برخه اصفهان او حج ته د میرویس تګ، د میرویس مناجات، خوب لیدل او مرګ بیانوي. په پټه خزانه کښي یې کلام د بېلګې په ډول خوندي شوی دی، د رېدیخان د حال شرحه او نور تفصیلات به د دې کتاب په وروستۍ برخه، په هغه ځای کښي راشي، چي دهوتکي دورې د نومیالیو او مشهورو کسانو بحث کېږي.

که پاچا نه کړي دادخواهي د مظلوم ظالم حاکم کا ظلم ډېر پر محکوم
جور چې ډېر سي سلطنت سي برباد دظلم قصر پوپنا بې بنیاد
کافر کولای سلطنت سي مدام که وکړي داد، نه وي جابر پر انام
مګر ظالم خونه سي کړای سلطنت خالق رحیم دی ورکوي خلافت
چا ته چې زړه یې وي په مهر ودان دخدای ﷻ عیال ګڼي پرځمکه انسان
سلطانه واوره په ښي غوږ دا وینا مه کړه ستم د خلق الله په هر چا
د ستمګارو پای ورانی دی، خراب د ظلم اور یې کا په خپله تراب
د مظلوم آه داسې کاري وي ګوره چې اوریې نه ځي دظالم له کوره
ښایي ظالم چې رحم وکا په ځان په ظلم خوار نه کړي خپل ځان اوجهان
سلطانه ګوره پر ځان رحم کوه خپل کلی کور په جور مه ورانوه[١]

وروسته د سلطان حسین صفوي هغه ځواب بیانوي، چې میرویس ته یې ورکړی و:

سلطان وویل: زه د ګرګین د ظلم و ستم چاره نه شم کولای. که چیري هغه یوې خوا ته کړم بیا هم کندهار نه پرېږدي.

ګرګین لېوه دی او د لېوه کار ظلم دی، ویني تویوي او پسونه داړي.

زه هم په وېره کي یم، چي له ګرګین سره څه وکړم؟ نامسلمان او بې دینه ارمنی دی...

نه ځان د اسلام پابند بولي، نه نصراني دی او نه له عیسیٰ څخه وېرېږي...

وېرېږم چي پاک خدای ﷻ خپل قهر ښکاره کړي او د سلطنت په کور کښي تیاره راشي.[٢]

## حج ته د میرویس تګ:

ترڅه موده وروسته میرویس دبیت الله زیارت تکل وکړ او له صفوي پاچا څخه یې اجازه وغوښتله، هغه ته یې ولیکل: اروایي ستونزو او کړاوونو ډېر ستومانه کړی یم، تر دې د مخه چي ناروغ شم، نو ډېره مینه او لېوالتیا لرم چي د سپېڅلو ځایونو او ښارونو لیدنه وکړم، یو څه موده

(١) پټه خزانه، ١٣٩ - ١٤١ مخونه.

(٢) پټه خزانه، ١٣٩ مخ.

پکښې تېره کړم، که چېرې سلطان اجازه راکړي د حج تر مراسمو او د شعارونو تر ادا کولو او زيارت وروسته به بېرته راشم ... "[۱]

سلطان حسين صفوي لکه چې دمخه مو وويل، په ظاهره د مذهبي مراسمو ډېر پابند و، له دې کبله يې ونه غوښتل چې دهغه عزم او تکل شنډ کړي، نو اجازه يې ورکړه او ميرويس له خپلو ملګرو سره د مکې معظمې خوا ته روان شو. ميرويس له هغه ځايه د حج مراسمو له اداکولو او له سترو عالمانو سره ترکتلو وروسته مدينې مکرمې ته لاړ او د مقدسو ځايونو تر زيارت وروسته يې دهغه ځای له مخوروکسانو او عالمانو سره هم وکتل او په دواړو ځايونو کښې يې د دود په څېر هغه سوغاتونه او تحفې چې له اصفهان څخه يې له ځان سره وړې وې، د هغو ځايونو سترو کسانو ته وړاندې کړې او په پای کښې يې د افغان قوم تولې بدمرغۍ او فشارونه په يوه سوزناک مناجات کې د رسول اکرم ﷺ حضور ته عرض کړل.

### د ميرويس مناجات:

رېديخان پخپله منظومه محمودنامه کښې يو سوزناک مناجات د ميرويس له خولې په پښتو نظم راوړی او وايي: ميرويس يوه شپه په يثرب کښې د خاتم النبيين په حضور کښې عرض کړ. د رېديخان نظم دا دی:

ولاړی د شپې يې په يثرب کا فرياد — رسول د خدای ته چې سو قوم برباد
ستا پر امت راغی د ظلم دوران — واوره رسوله د دې قوم فغان
پښتون خو ستا پرنامه ځان کړي فدا — ای خيرالناسه! واوره ته يې ندا
وژغوره دوی، ته د ظالم له لاسه — ګرګين له منځه د پښتون وباسه
ستا په نامه دی کلمه ګويه پښتون — نه به سي هيڅکله له تانه راستون
مرګ او ژوند مو د اسلام دپاره — ستا د دربار ستا د سلام دپاره
مه مو کړه هېر خير الورا رسوله! — فخر کونين نور الهدیٰ رسوله!
اوښکي مي څاڅي په دربار يم ولاړ — قوم سو په اور د ظلم تول لتاړ
يو وار نظر وکړه پر موږ چي سو وړ — و ظالمانو ته تر خو به يو پړ
ستا لطف و مهر دي شامل پر جهان — هر خراب زړه دی ستا په مهر ودان

(۱) جنګ افغان و پارس، ۳۷ – ۳۸ مخونه.

که ستا نظر نه وي خراب سوپښتون — په اور د ظلم تور کباب سو پښتون
راغلم له ليري ستا دربار ته نبي ﷺ — ته مي شفيع سه خدای غفار ته نبي
چي پر پښتون قوم نازل کا رحمت — کړي يې خوندي ناموس پخپل مرحمت
لاس د ظالم يې له ګرېوانه کا لنډ — وچ شي د ظلم د ګندو خيرو ډنډ
ستاشريعت سي ټينګ په منځ دپښتون — ورك سي بيداد اوکم سي رنځ دپښتون
دا مي دی سوال ولاړ و درته يمه — محتاج دي تش و لږ نظر ته يمه
د قوم حال کړم درته عرض په ادب — ته يې ملهم د خوږو زړو د پرهر
وژغوره زموږ نام و ناموس له بېداد — کړو بې ناموسو ظالمانو برباد
سر که را پورته زموږ حال وګوره — د ظالم ظلم بد احوال وګوره
نه يې له تا شرم و حيا سته نبي ﷺ — نه شرم کاندي له عيسٰی ارمني
عرض مي د حال وکا. و تاته پېشوا — بل څوك مو نه سته خواله ګر په دنيا[1]

## د ميرويس خوب ليدل:

دغه راز رېديخان مومند پخپله محمودنامه کښي راوړي چي:
ميرويس په هماغه شپه همغه ځای کي خوب وليد چي حضرت صديق ﷺ او حضرت عمر فاروق ﷺ ورته فرمايي:

(ای د قوم مشره! تردې زيات غم مه کوه، قوم دي وژغورل شو، غم مه خوره... څه لاړشه، قوم ته دي زېرى ورسوه چي د ظالم ظلم کم شو، پاک خدای ﷻ به افغان د ظالم له لاسه ازاد کړي، ننګ او ناموس به يې خراب او برباد نه شي! خدای تعالی ﷻ به دغه قوم پخپل رحمت اباد کړي او نوم به يې په نړۍ کښي د (مجاهد) په توګه پاتي وي. هيڅوک به يې ورک او ذليل نه کړي...

کلمة الله به يې پر ژبه جاري وي او په همدې لاره کښي به مړه شي، چي د اسلام نښي په کښي ځلېږي، د دې قوم نوم به له له دنيا څخه ورک نه شي)[2].

* * *

درانه لوستونکي پوهېږي هغه وخت چي ميرويس بېرته خپل وطن ته

(۱) پته خزانه، ۱۴۱- ۱۴۳ مخونه.
(۲) پته خزانه، ۱۴۱ – ۱۴۳ مخونه.

راغی، په هغه زمانه کښې به دده د خوب لیدلو خبرو د افغان مسلمان ملت په ارواکښې څومره شور او هیجان رامنځته کاوه؟

څکه، چې داسي روایتونه د افغان ملت په څېر د يوه مسلمان ملت په ارواکښې پر ملي احساساتو سربېره یو مذهبي شور او خوځښت هم پیدا کوي او هغه وخت چې ملي او مذهبي احساسات سره یوځای شي، نو بیا د ملت د پورته کولو او یادولو په لاره کښې بله هیڅ مانا نه پاتې کېږي او هر تصمیم چې ونیسي، د دغو دوو څواکونو له کبله کامیابېږي او یا د بري په لار کښې قربانېږي.

بنایي د همدې مقصد لپاره میرویس خپل خوب وروسته تر دې چې هېواد ته بېرته راغی نقل کړ، چې پر ملي احساساتو سربېره مذهبي قوه هم له ځان سره ملګري کړي او هم په همدې موخه، وروسته تردې چې يې د حج مراسم او سپېڅلو ځایونو زیارت وکړ، نو میرویس د مکې مکرمې له عالمانو څخه دخپل ملت د خپلواکی په باب فتوی وغوښته او له هغوی څخه يې له موخې سره سمه فتوی واخیستله.

## د میرویس فتوی غوښتنه :

لکه تاریخ کښونکي چي لیکي:میرویس سره له دې چې د حج فریضې او د مذهبي مراسمو د ادا کولو لپاره تللی و، بل مهم مقصد يې هم درلود چي هغه د مذهبي اسنادو او دلایلو لاسته راوړل وو، چې د یرغلګرو پر ضد يې دقیام مشروعیت لا زماوه او په کندهار کښې يې د انقلاب لپاره زمینه مساعدوله او هم يې غوښتل چي د هغه ځای د عالمانو او فقهاوو افکار ورته له خپلو افکارو سره توافق وکړي او يو مذهبي قوي سند په لاس ولري، چي د قیام د اعلان په وخت کښې دکندهار عالمان هم له ده سره ملګري او مرستیالان شي.[1] لکه د افغان او پارس جګړې (جنګ افغان و پارس) دکتاب د لیکوال په وینا، میرویس په مکه معظمه کي هم د هغه ځای جیدو عالمانو او فقهاوو ته ځانګړې مبلمستیا جوړه کړې وه، خپل مقصد او د زړه راز

(۱) د افغانستان تاریخ - میلسن، ۲۰۱ مخ، د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۵۰ مخ. تتمة البیان ۷۶مخ.

یې هڅوی ته ښکاره کړ او ویې ویل چې موږ افغانــان د دړو هــېوادو ترمنځ پراته او محدود شوي یو، چې یوه لوري ته مو دهند امپراتوري او بل لوري ته مو د پارس هېواد دی، موږ د حضرت محمد ﷺ په دین یو، خو څه موده پخوا پارسیانو زموږ پر هېواد باندې تېری او تجـاوز وکـړ او پـر مـوږ داسـې ظلمونه کېږي، چې د زغم وړنــه دي، لکــه چــې زمــوږ اوسـنی‌حکمران یــو بدچلنده اوظالــم سړی دی، چې ګرګین نومېږي او پر موږ باندې حکومــت کوي ، دی د دین او عدالت د مقرراتو پرخلاف پر موږ او زمــوږ پــر کورنیــو باندې ظلمونه کوي او غواړي چې زموږ قوم خپل غلام کړي او آل و عیال ګرجستان ته ولېږي، نو ایا موږ په داسې حال حق نه لرو چې د خپــل دیــن او ناموس دساتنې لپاره توري له تیکو څخه وباسو؟[۱]

په مقابل کښې یــې د مکې د جیدو عالمانو او فقــهاوو لــه خــوا لــه خپلو هیلو سره سم مثبت ځواب وموند او ان لیکلې فتوٰی یـــې چــې تولــو لاسلیک کړې وه، میرویس ته ورکړه.[۲] خو لکه چې انګلیسي تاریخ کښونکی میلیسن لیکي: پوښتنو بله بڼه درلوده او داسې وې:

۱: آیا دهغو مسلمانانو لپاره چې د خپلو دینــې کــارونو پــه ترســره کولــو کښې آزاد نه وي، نو د توري په زور د ځان آزادول جایز دي؟

۲ : که چیري د یوه ملت مشران ناچاره شي، له یو بې دین پــاچــا ســره د لنډمهال لپاره او مشروطه ډول بیعت او معــاهده وکــړي، خــو هغــه پــاچــا د معاهدې لومړني شرطونه رعایت نه کړي، آیا هغه ملت حق لري چې خپلــه معاهده او بیعت فسخه کړي؟

د دغو دواړه پوښتنو ځواب مثبت او (بې له شکه) کلمه وه.[۳]

سر جان مالکم او نورو تاریخ کښونکو یوازې د مکې له اهل ســـنتو عالمانو څخه د میرویس فتــوا اخیســتنه یــاده کــړې او د پوښتنــو پــه هلکــه یې څه نه دي لیکلي.[۳]

(۱) (۲) جنګ افغان و پارس، ۳۸ او ۳۹ مخونه.
(۳) د افغانستان تاریخ ، میلیسن، ۲۰۲ مخ.
(۴) تاریخ ایران. سرجان مالکم، ۱۹۷ مخ. د سید جمال الدین افغان تتمة البیان، ۷۶ مخ

په هر صورت، کله چي میرویس اصفهان ته بېرته راستنېده، نو د صفوي حکومت پر خلاف یې د حجاز د عالمانو مهمه فتوٰی له ځان سره درلودله.

## له حج څخه د میرویس راستنېدنه:

میرویس بیرته اصفهان ته راغی، له مکې څخه یې ځېلو درباري ملګرو ته له ځان سره متبرک او قیمتي عود و عنبر او نور خوشبویه شیان راوړل. درباری ملګرو یې هغه تر اول وار زیات پاچا ته ورنژدې او محبوب کړی و. دده عقل او ښه غور یې وستایه او په سلطنتي کارونو کښې یې وخت او لار ورکړه.[1]

خو لکه چي میلیسون لیکي: که څه هم له وزیرانو سره یې تنګ راتګ کاوه، خو په ظاهره یې د هغوی په ملکي چارو کښې لاسوهنه نه کوله.[2]

په دې وخت کې میرویس کولای شول کندهار ته راشي او د قوم د آزادۍ نقشه چي له ځان سره یې جوړه کړې وه، عملي کړي. خو تلوار یې ور ونه ګاڼه او له ځان سره یې پرېکړه وکړه چي څه موده نور هم په اصفهان کښې پاتي شي او پېښې تر پام لاندې ولري.

## یوه عجیبه پېښه:

کله چي میرویس له مکې څخه اصفهان ته راستون شو، یوه عجیبه پېښه وشوه، چي په نامستقیم ډول یې د میرویس د نقشې د عملي کېدو او ټینګېدو لپاره زمینه برابره کړه، پېښه دا وه چي په (۱۱۲۰ هـ) کال یو سفیر شماخي ته راغی، هغه د روس له امپراتوار (پتر کبیر) څخه اصفهان دربار ته راته، دغه سړی (اسرائیل اري)[3] نومېده او اصلاً ارمني او د پارس له قاپانلو څخه و[4] وروسته تر دې چي د فرانسې، ایتالیا او المان په عسکرو کښې یې د قهوه چي ګری په دنده سیاحت کړی و، د المان د لومړی امپراتو ر (لیوپولد) په عسکرو کښې پر داخلېدو

(۱) جنګ افغان و پارس، ۳۹ مخ.
(۲) د افغانستان تاریخ، ۲۰۲ مخ.
(۳) Israel orii.
(۴) د جنګ افغان و پارس په کتاب کښي Kapan (کاپان) راغلی، ۴ مخ.

( ۱۰٦۹ _ ۱۱۱۷ هـ ) بریالی شوی اوکرار کرار یې په دغو عسکرو کښې د جزوي منصبداری حیثیت پیدا کړ او له دې کبله چې یو دسیسه کاره سړی و کرار کرار یې د اتریش د وزیرانو په دربار کښې هم لار وموندله او څرنګه چې په زیاترو ختیزو ژبو پوهېده نو ماموریت یې وموند چې اسلامبول ته لاړ شي او په دې خبر باندې ځان پوه کړي چې عثماني دولت دهغې سولې د منلو لپاره تیار دی اوکه نه چې اتریش او د ده متحدینو ( المان،لهستان او ونیز ) د هغه وړاندیز کاوه، دا هغه سوله وه چې وروسته بیا په (۱۱۱۱ هـ ) کال کښې په کارلوتیز کښې وشوه.

وروسته تر هغه اسرائیل اري د روس د قیصر خدمت ته حاضر شو او دده په عسکرو کښې یې د سرهنګۍ حیثیت پیدا کړ.[1] وروسته تر دې چې یې په عثماني هېواد کښې د روسي دولت لپاره خپل خدمتونه ترسره کړل دهغو په بدل کښې یې له پترکبیر څخه وغوښتل چې دی اصفهان دربار ته د سفارت په عنوان ولېږي، امپراتور سربېره پردې چې د ده دغه غوښتنه یې ومنله، امر یې وکړ چې هر څومره تجارتي مالونه چې دي او د ده ملګري یې له ځان سره وړي، هغه دي له ګمرکي محصول څخه معاف وي.[2] دغه کار د دې سبب شو، چې زیات ارمنیان د تجارتي استفادې په غرض ده ته راټول شي او اسرائیل اري د امپراتوار له خوا د اصفهان دربار ته ور وپېژندل شو.

اسرائیل اري مخکې له دې چې اصفهان ته لاړ شي (وینې) ته لاړ او د ده د خدمت په نمانځه یې د اتریش له امپراتور څخه یو لیک د صفوي پاچا، سلطان حسین په نامه واخیست او له هغه ځایه په روم کې د پاپ دربار ته لاړ او له پاپ څخه یې هم د صفوي پاچا په نامه یو لیک لاسته راوړ او تر هغه وروسته له یوې لویې ډلې ارمنیانو او روسانو سره شماخې ته روان شو او پولې ته ورسېد.

کله‌چې دده د راتلو خبر اصفهان دربار ته ورسېد، نو دربار یو کس راوغوښت چې دده د هویت او احوال په اړه پوښتنې وکړي، چې څوک دی؟ د کوم ځای او د کوم ملت دی؟ کله چې دده له ارمني توب څخه خبر

(۱) کاوه مجله، دویم کال، د ۱۲ مې ګڼې ضمیمه، ۸۷ مخ.
(۲) تاریخ ایران، سرجان مالکم، ۱۹۷ مخ.

شول نو ډېر په تشویش کښي ولوېدل، په تېره بیا چي ویلـي یـې وو:دی لـه ارمني شهزاده ګانو څخه دی او له خپلو حقوقو څخه به لاس وا نه خلي...
سربېره پردې (میشل) نومی سړی چي د فرانسې د څوارلسمې لواء له خـوا په همغو وختونو کښي د سوداګریزو چارو لپاره د سـلطان حسین دربـار تـه راغلی و او په ( ۱۱۲۱ هـ ) کال کښي بېرته فرانسې ته لاړ، په همـدې سـبب یې له لیوپولد څخه اعتمادنامه په لاس کښي درلــوده، چـي لـه فرانسـویانو سره په جګړه کښي و او له همدې وېرې کاتولیکي کشیشان به له پارس نه د ده په راتـګ خوښ نه وو، دوی په دې وېره کــي وو چـي وبـه شـړل شـي، دوی خوشحاله نه وو، له دې کبله یـې ویل چي په رښتیا دی ارمني نــژاده دی او د ده طالع په همدې کي دي چي نوم یـې مکنون دی، که چـیري د نامه توري یې وړاندي وروسته شي یوه داسي جملـه ورڅخـه جـوړېږي، چي فرانسوي معنی به یې داشي: ( دی پاچا کېږي)[۱]
هغه بل شي چي د اصفهان درباریانو وېره او اندېښنه زیاته کـړه د قره باغ له اوسېدونکو څخه د یوه تن اټکل و، چي خلکو ته به یــې داسـي ویل:" هغه یو ارمنی پاچا دی، چي دده تر راتـګ وړاندي زموږ په کتـابونو کښي یاد شوی او یو وخت به پارس ته راشي او دغه سـیمه بـه پخپـل واک کښي راولي او تر هغه وختـه پـوري چـي ارمنـي حکومـت خپـل پخوانـي عظمت ته ونه رسوي، نو لاس به وا نه خلي..."[۲]
کله چي شماخې ته ورسېد، د درېیو سوو تنو ارمنیانو[۳] له خوا یې ساتنه کېده، چي په لار کښي سل تنه نور هم ورسره یو ځای شول.
شماخې ته د ده د رسېدو په وخت کښي دده له خولې داخبره بیا اورېدل کېدلـه چـــي: ( زه د پخوانیــو ارمنیــانو لــه هغــو پــاچایـــانو څخه نه یم). کله چي نورو ارمنیانو دغه خبره له هغې بلې خبرې سره چـي پـه کتـابونو کــښي لیکــل شــوې وه، نــژدې مونــده. نــو پخپــل منځ کــښي بــه یـــې ویــل: ( پــرېږدئ چـــي دی زمــوږ پــاچــا وي.

(۱) کاوه مجله، دویم کال، د ۱۲ مي ګڼې د ضمیمې په ۸۸ مخ کښي راغلی قـول دی پـه دې ترتیب : Israel Orii –IISera rooi ( ray)
(۲) جنګ افغان و پارس. ۴۱ مخ.
(۳) کاوه مجله، په فرانسوی ژبه، د کروزینسکي تالیف ( په ایران کښي د وروستي انقلاب تاریخ ) په حواله په اصفهان کښي د ده د ملګرو شمېر دوه سوه تنه لیکلی دی.

دی خپل هېواد ته راغلی دی، باید خامخا زمور په واسطه خواکمن شي).

صفوي پاچا په دغو خبرو حیرانه شو او کابینې ته یې د غونډې جوړولو لارښوونه وکړه او میرویس یې هم دې غونډې ته وباله.

## صفوي کابینې ته د میرویس مشورې ورکول:

څرنګه چې د اصفهان درباریان د میرویس په ذکاوت، هوښیارۍ او سیاستمدارۍ قایل او معترف وو او دی یې یو دقیق او غورکوونکی سړی ګڼلی و، نو له بلې خوا دغه پېښه د ګرګین او له ارمنیانو او ګرجیانو سره دده د اړیکو په نسبت د میرویس اټکل ته ښه چانس ورکړی و، میرویس یې دکابینې مجلس ته د مشورې لپاره راوغوښت[1] او د دې نه حلېدونکې مسئلې په باب یې له ده څخه مشوره وغوښتله او پوښتنه یې ور څخه وکړه:

کومه خبره ښه ده؟ د دغه سفیر نیول او که پرېښودل؟

څکه چې دکابینې د غړو یوه ډله د دغه سفیر د نیولو او ګرفتارۍ پلوي کوله او بله ډله ددې نظریې پرخلاف وه او زیاتره بېطرفه غړي هم وو.

مجلس میرویس ته وویل: ( موږ ستا خدای درکړې رایې او سلیم عقل ته اړتیا لرو، ته په دې موضوع کښې څه وایې؟).

میرویس سره له دې چې د اصفهان له دربار څخه چې دده د قوم او خاورې خپلواکي یې سلب کړې وه، خوښ او راضي نه و، خو بیا یې هم د مشورې له ورکولو غاړه ونه غړوله او هغه څه یې وویل چې د دوی په حق کښې یې ګټور ګڼل.

میرویس تر لنډې سریزې وروسته وویل:"زما په عقیده څرنګه چې د دې سړي راتګ په سیاسي ډول دی، دا چې ستاسو هېواد ته داخلېږي، نو ستاسو د څواک تر اغېز او تحت الشعاع لاندې راځي او د دې طاقت او قدرت به و نه لري، چې د کومې فتنې اوالې ګولې د پیدا کولو سبب شي، که چیرې تاسو له ده نه دکومې فتنې انتظار لرئ، پرېږدئ چې دی یو اقدام وکړي، نو بیا همدغه وخت کولای شئ چې زندان ته یې

(۱) جنګ افغان و پارس، ۴۲ مخ.

ولېږئ او بندي يې کړئ او د يو جام په واسطه يې کار وکړئ؟
او که چيري له ده نه داسي اقدام وشي، نو بيا څه موده وروسته چي وخت يې پوره شو، بېرته يې د روس زار ته ولېږئ، په هغه صورت کښي بيا د هغه په حق کښي لوئ سپکاوی او توهين شوی، چي دی يې د فتنې او فساد د اور بلولو لپاره ولېږه، خو ناکام بېرته ستنېږي که داسي نه وي او ستاسو په دربار کښي ونه منل شي نو کېدی شي د ګرګين د ورور په شان ځان د روس قونسلګری ته ورسوي او دارمنيانو دطغيان سبب شي او هغه وخت بيا لازمېږي چي د ګرګين د هنګامې په شان يوه بله هنګامه پيدا شي او دډېرو وينو تويېدو او د زياتو پيسو د لګېدو سبب شي.
په هر صورت، هغه شئ چي زما په نظر په داسې مهم وخت کښي ورته ضرورت دی، تر ټولو لومړی تاسو بايد خپلو پولو ته متوجه شئ، وګورئ له يوې خوا ګرجي شهزاده ګان د روس له قيصر څخه د مرستې او حمايې غوښتنه کوي او دګرجستان والي د ګرګين د تره زوی نظرعليخان يې د روس د قيصر دربار ته لېږلی دی او له بلې خوا هم پوهېږي، چي ګرګين له ارمني قبيلې څخه دی، احتمال لري له روسانو سره ارتباط پيدا کړي، دی وخت ته منتظر دی چي سرکشي او طغيان وکړي ( لکه چي پخوا يې هم هڅه وکړه او له ناکامۍ سره مخامخ شو) او هغوی يې بيا د مرستې لپاره وغوښتل؛ له خپلو ګاونډيانو څخه استفاده وکړي او يا دا چي کندهار ولايت د هند پاچا ته تسليم کړي او د هند په مرسته خپل مقصد ته ورسېږي او هم ليري نه ده چي افغانان هم پخپله ډله کښي راګډ کړي، ځکه چي زه هلته حاضر وم او د هغه کارونه او اقدامات مې ليدل، هغه له ما څخه کوم مخالفت ونه ليد، يوازي يې په هغه ځای کښي زما موجوديت دخپل مرام لپاره يو خطر ګاڼه، نو دلته يې راولېږلم چي ژر خپل مقصد ته ورسېږي.
په هر صورت، که چيري دغه سفير منل کېږي، نو تاسو بايد د خطر د ليري کولو لپاره لږ ترلږه غور او هڅه له لاسه ورنه کړئ او د هغه کړه وړه، حرکت او وينا تر ځارنې لاندي ولرئ.[1]
ميرويس په پای کښي دا هم وويل: "... په رښتيا چي وضعيت

(۱) جنګ افغان و پارس، ۴۲، ۴۳ او ۴۴ مخونه.

ډېر نازک دی، که چیري پترکبیر غوښتلای چي له روغي جوړي او د دوستی له لاری سفیر راولېږي، نو دغه ارمني نسبه سړی به یې نه رالېږه، په تېره بیا داسي شخص چي د ارمنیانو د شهزاده توب دعوه هم لري، له دې کبله ستاسو حکومت ته لازم دی چي ټول ګرجیان او ارمنیان تر خپلي څارنې لاندي ونیسي، ځکه څه موده نه وه تېره شوې، چي ګرجیانو د ګرګین په مشری بغاوت وکړ او اوس هم چي د ګرګین د تره زوی د روس د زار په دربار کښي لوړ مقام لري، ایا د دې سفیر راتګ به د ګرجیانو او ارمنیانو، په تېره بیا د ګرګین پر روحیاتو منفي تاثیرونه پیدا نه کړي؟[1] او هم څه د حیرانی ځای دی چي که چیري ګرګین د اسلام دین او ستاسو تابعیت د روسانو په مشوره په همدې مقصد قبول کړی وي، چي په داسي نازکو او مهمو وختونو کښي ستاسو د سلطنت په کورنیو چارو کښي له خپل ځواک څخه کار واخلي؟ ..."[2]

لکه چي تاریخ کښونکي لیکي: د میرویس دغه څرګندوني له ډېرو مهمو سیاسي او بشپړو ټکیو څخه وې، چي په داسي وخت او زمان کښي له یوه سیاسي ځواکمن شخص څخه یې تمه کېده او د همدغو ویناوو له کبله سلطان حسین صفوي هغه خطر ته متوجه شو چي د ګرګین له خوا راوان و او وروسته تر دې چي یې دمیرویس د شورا په اثر د روس د سفیر (اسراییل اري) نښه تود هرکلی وکړ، د ګرګین د اقتدار کمولو په فکر کښي شو، خو د ګرګین اقتدار کمول کوم اسانه کار نه و. که چیري یې معزول کړی وای نو د امر د نه منلو او د هند پاچا ته د ده دتسلیمېدو وېره کېدله اوکه چیري پخپل حال یې پرېښودلای، نو وضعیت یې ورځ په ورځ لا پسي خرابېده او خطرناکېده.

نو په پای کښي یې چاره وسنجوله، چي هم لري او ګوښه نه شي او هم یې واک لږ نه شي او هغه دا وو چي میرویس یې بیا د کندهار د (کلانتری) په دنده وټاکه، چي د ګرګین اوضاع او حرکت تر څارني لاندي ونیسي او که چیري وخت پیدا شي، نو د هغه پرځای هم ودرېږي.[3]

(۱) د افغانستان تاریخ ـ میلسین، ۲۲۰ ۴ مخ
(۲) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۵۲ مخ.
(۳) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۰۵ مخ.

دا دی، هغه میرویس چې اصفهان ته تر ساتنې او څارنې لانـدې د سیاسـي بندي په توګه لېږل شوی و، دحکمران په توګه ببرته خپل هېواد ته راځي.

### هېواد ته بیاستنېدنه:

په دې توګه میرویس ته وخت پیدا شو چې د خپلې نقشې د عملـي کولو لپاره ببرته هېواد ته راشي او د ببرته راتګ پر وخـت یـې لـه صفـوي درباریانو څخه له ځان سره خو لیکونه درلـودل. چـې پـه هغـو کـښې پـر ګرګین دا تینګار شوی و، چې د میرویس له مشورې پرته کوم کار ونـه کـړي او دی پخپل پخواني او لومړني منصب وپېژني او د ده درناوی وساتي. ان اعتمادالدوله میرویس ته په ځانګړې ډول ویلي وو چې پـه هـر حـال کـې باید د ګرګین وضعیت او کارونه تر څارنې لاندې ولري او ده ته یې یو مـهر شوی سند هم ورکړی و، چې د اړتیا پر وخت ورڅخه کار واخلي.[1]

دیوان بیګي هم ډېر لیکونه ورکړل. په هغو کښې دا خبرې لیکـل شوې وې، چې میرویس یو عاقل، هوښیاره او پوه شـخص دی او لـه پـاچـا سره یې لویې او ښې مرستې کړې دي.

میرویس د لیکونو تر اخیستو وروسته نور ځند ونه باله، سملاسـي د کرمان او سیستان له لارې کندهار ته را روان شـو، پـه لاره کـښې یـې پـه کاروانسرایونو او نظامي کلاګانـو کـښې وخـت پـر وخـت پـه ډېر عـزت او درناوي سره هرکلی کـېده، ان د افغان او پـارس د جنـګ لیکـوال لیکـي چې په هره عسکري قرارګاه کښې به یـې د یوه ټولګي موزیک او تشریفاتي قطعې په واسطه هرکلی کېده.[2]

له هغه وخته چې میرویس افغاني خاوري ته راننـووت. نـو پـه هـرځای کښې به یې د هغو قبایلو له مشرانو سره چې د لارې په سـرکښې وو د خپلـو راتلونکو اقدامانو په اړه جرګې او مرکې کولې.[3] تر دې چې کندهار ته ورسېد.

### کندهار ته رسېدنه:

کندهار تــه درسـېدو پـر وخـت د مـیرویس ډېر تـود او پـه ولولـو سره هرکلی وشو. ګرګین که څه هم په ظاهره له خلکو سره په دې هر کلي

---

(۱) ، (۲) جنګ افغان و پارس، ۴۵ مخ.
(۳) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، ۵۲ مخ.

کښي ګډون وکړ او د میرویس درناوی یې پرخای کړ، خو په باطن کښي یې د غضب دېو په غړمبهاري او د کینې دېګ په جوش راغی. په تېره بیا چې د اصفهان دربار سپارښتلیکونه او تهدید نامې یې وکتلې.

څو ورځي وروسته میرویس له کندهار بناره خپل کلیوالي کـور تـه لاړ او هلته یې له خانانو، قومـي مشـرانو او همـرازو ملـګرو سـره چـې پـه ډېر شوق یې دده د کتنې هیله درلوده وکتل، عام خلک به ډله ډله د بیـت الله زیارت د مبارکۍ لپاره د میرویس حضور ته راتلل، خو ټول خلک دې ته منتظر وو چې میرویس څه وایي؟ څه کوي؟ او بالآخره یې د قـوم د نجـات لپاره څه زېری له خان سره راوړی دی؟

نو یو څه موده په دې ډول تېره شوه او دغه لیدنې کتنې ورځ پـه ورځ زیاتېدلې او میرویس به له خپلو ځانـګړو او په راز شـریکو ملـګرو سـره په پټه د قـوم او هـېواد د آزادۍ نقشـې طرحـه کولـې او عملـي لاري یـې سنجولې.

ګرګین له دغو ملاقاتونو او د خلکو له تګ راتګه بې خـبره نـه و، هغه له میرویس څخه د انتقام اخیسـتو او لـه پښتو غورځولـو لپـاره مناسـب وخت او پلمه لټوله، له هغو پلمو څخه یوه چې پـه هغـه وخـت کـښي یـې جوړوله دا وه چې میرویس ته یې پیغام ولېږه چې خپلـه لـور د ګرګین زوی ته ورکړي.[1]

په دې کار کښي یې څو مقصدونه درلودل: یو دا چـې مـیرویس د ګرګین کور ته د خپلې لور په لېږلو سره د قوم په نزد سـپک او حقیر کـړي، دویم دا چې خپل زوی ته د میرویس د لور په واده کولو سـره خپـل ځواک او ظلمونه زیات کړي. دریم دا چې که مـیرویس د خپلـي لـور لـه ورکولـو انکار وکړي، نو د مخالفت لپاره به یوه پلمه جوړه شي.

ځرنـګه چې پیغام د تحکم او امر بڼه درلوده، نو میرویس یـې لـږ څه اندېښمن کړ ځکه چې له یوې خـوا د ګرګین زوی تـه د خپلـې لـور ورکـول د افغانیت او ملیت د غوښتنې خلا ف وو، له بلې خوا دا کـار د قـوم پـه نـزد دده قدر او حیثیت بېخي له منځه وړل وو او له بلـې خـوا ځرنـګه چـې د انقلاب لپاره زمینه برابره شوې نه وه، نو که د ګرګین د آمرانه او حاکمانـه پیغـام ردول

(۱) د سید جمال الدین افغان د تتمة البیان د ژباړې ۷۷ مخ.

د ده د نقشې د له منځه تلو سبب شوی وای؛ نو بیا یې څه وکړل؟

## لومړنۍ ملي جرګه:[۱]

مخکې له دې چې دی پخپله د ګرګین د پیغام ځواب ورکړي، سملاسي یې د قوم رئیسان لو مشران (کوکران) کلي[۲] ته راوبلل او ملي جرګه یې جوړه کړه او دغه موضوع یې ورته وړاندې کړه چې له افغاني دود او عادت سره سم مشوره او پریکړه وکړي.

کله چې جرګه جوړه شوه، میرویس لومړی د ګرګین د حاکمانه غوښتنې موضوع رامنځته کړه، افغانان چې طبعاً د ناموس پر ساتنه مینان دي او په دې هکله مشهور متل لري چې وايي:

(( دنیا تر سر جار او سر تر ناموس )) یعنې شتمني دي له سره قربان او سر دي تر ناموس جار. د دې خبرې په اورېدو یې د غیرت وینې په جوش راغلې، په تېره بیا چې غوښتنو حاکمانه بڼه درلوده او هغه هم د یو داسي سړي له خوا چې د دوی آزادي یې سلب کړې او مالونه یې غصب او بنځې او کوچنیان یې وژلي دي، له هرې خوا په جوش و خروش رغونه پورته شول، چې د ګرګین دغه آمرانه پیغام په هېڅ ډول د منلو وړ نه دی، باید په غوڅ ډول رد شي.

میرویس یې د خپلې لور له ورکولو سخت منع کړ او مقاومت ته یې وهڅاوه او قسم یې وکړ چې د ده د مرستې لپاره په سر او مال ولاړ دي.

میرویس چې دوی یې د ځان په شان خپه اومتأثر ولیدل، نو په زړه

---

(۱) جرګه: افغانان له پخوا ځانګړې غونډه لري، چې هغې ته (جرګه) وايي. دغه جرګې په ټولو ملي او مهمو ولسي چارو کښې د قوم د مشرانو او سپین ږیرو له خوا جوړېږي چې تر خبرواترو او بحثونو وروسته هره پرېکړه یې چې تصویب کړه، هغه بیا د ټولو قومونو په نزد معتبره او د منلو وړ ده او د قوم هر شخص ځان دهغې په عملي کولو، مکلف ګڼي ان ملي فرض یې شمېري. په نننۍ اصطلاح د افغانانو جرګه هم د مقننه مجلسو حیثیت لري او هم قضایي او اجرائیه حیثیت.

( د موضوع تفصیل دې د پښتونستان په کتاب کښې چې د بنده تالیف او په کابل کښې چاپ شوی دی، ۲۸۵ مخ ) ولوستل شي.

(۲) کوکران: دکندهار ښار دلویدیز په شپږ کیلومترۍ کښې یو کلی دی، چې میرویس په کښې ښخ دی.

کښي خوشحاله شو، خو په ظاهره يې هغـوی تـه د زغـم او صـبر لارښوونـه وکړه او ويل يې چي: "ښه دا ده چي فتنه پيـدا نـه شـي او لازم دی چـي تاسو پر خپلو فکرونو ثـابت او ټـينـګ واوسـئ او خپـل راز او مقصـد پـټ وساتئ او پرما اعتماد اويقين وکړئ، چي له دښمنانو سخت انتقام واخلم"[۱]

وروسته تر هغه ميرويس چي د رحمـان بابـا[۲] دېوان يـې پـه لاس کښي درلـود، د فـال نيولـو پـه ډول يـې پرانيسـت او ويـې ويـل: *( راځئ چي له رحمان بابا څخه هم پوښتنه وکړو چي څه وايي)* دغه بيتونه راووتل:

زه مکتوب غوندي په پټه خوله ګويا يم — خاموشي زما تېرکا تـر غوغا زمـا
کښت د عشق په توده ځمکه امان چېرته — سمندر بويه چي زيست کا په صحرا زما

د شعرونو تر لوستو وروسته يې جرګې ته وويل چـې: " رحمـان بابـا هم مشوره راکوي چي سملاسي چـوپـوالي ښه دی، دظالمـانو کـار پايتـه رسېدلی دی، خو موږ ټول بايد په پټه خوله په خپل مقصد پسې هـڅه وکـړو چي وړ وخت را ورسېږي، هغه وخت به بيا پر تاسو غږ وکړم، هغه ورځ بايد موږ ټول تيار واوسو، چي ظالمان له خپل ګران هېواد څخه وشړو".[۳]

دا يې هم وويل چي: "اوس بايد موږ له تدبير څخه کـار واخلـو او خپلي توري د ګلابونو په پاڼو کي پټي کړو".[۴] جرګه تر ماښام پوري روانـه وه، په پای کښي دګرګين کور ته د مـيرويس دلـور لېږلـو پـه هکلـه داسـي پرېکړه وشوه، چي: "د ميرويس لور دې قطعاً ونه لېږل شي، خـو د ګرګين د اغفالولو لپاره بايد يـوه بلـه نجلـی ورولېږل شـي، چـي مـوږ د متجـاوزينو له منځه وړلو لپاره وخت پيدا کړو".

(۱) تاريخ ايران، سرجان مالکم، ۱۹۸ مخ.
(۲) *رحمان بابا:* د پښتـو ژبې لـه سترو شاعرانو څخه دی. د ی د مولانـا عبدالسـتار زوی او په قوم مومند و، په ۱۰۴۲ هجري کال د پېښور سيمې مربوط پـه بـهادر کلي کښي زېږېدلی او پـه ۱۱۲۸ هجري کـال کـښي وفـات شـوی دی. قـبر يـې د پېښور په جنوب، په عمومي هديره کښي د اخوند درويزه د مزار ترڅنګ دی. د ده د شعرونو دېوان پـه پښتنو کـښي دومره شـهرت او محبوبيـت لـري، لکـه چـي پـه پارسي کښي د حافظ شيرازي دېوان يې لـري، زيـاتره پښتـانـه کـه ښځي وي او کـه نارينه په هغه فالونه نيسي.
(۳) پټه خزانه، ۹۵ مخ.
(۴) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک ۵۴ مخ.

دویم ځل د جرګې تولو غړو د خپلې ژمنې او وعدې د وفا او د خپل قول د اثبات لپاره په‌قرآن کریم، توري، ډوډۍ او مالګي قسم وکړ او ویې ویل: " هر څوک چي مخالفت وکړي، ښځه دي ورباندي طلاقه وي."[1] او دغه وروستی قسم د افغانانو په عقیده او دود ډېر توند بلل کېږي، چي دوی غوښتل میرویس په دغه سوګند ډاډه کړي.

وروسته بیا میرویس د جرګې له پرېکړې سره سم له هغو خادمو څخه یوه نجلۍ چي د قوم او هېواد د خپلواکۍ په لاره کي دې کار ته داوطلبه شوې وه، د ګرګین د زوی په نکاح ولېږله.[2] او په دغه طریقه هغه پلمه چي د ګرګین له خوا د میرویس د خپلواکۍ غوښتني د اقداماتو د ناکامولو او شنډولو لپاره کېدله، بې اغېزې پاتې شوه او هم ګرګین داسي وګڼله چي میرویس په زړه کښي څه نه لري او پخلا کېدل غواړي، په هر کار کښي به یې د ده سلا، مشهوره او خوښه غوښتله. مېرویس به هم د وخت د غوښتني له مخې داسي ښودله چي د ګرګین ظلمونه او زیانونه یې هېر کړي دي. یوه میاشت وروسته یې د ګرګین له منځه وړلو لپاره دویمه جرګه جوړه کړه، دغه پېښې په ۱۷۰۸ ع کښي وشوې.[3]

## دویمه ملي جرګه:

یوه میاشت وروسته چي د ګرګین د ظلم اور بیا لمبې پیدا کړې، د قوم مشران د دویم ځل لپاره بیا میرویس ته راټول شول او د ګرګین ظلمونه یې بیان کړل، په دې جرګه کي چي په (مانجه)[4] نومي ځای کښي جوړه شوه، د کندهار د زیاتو قبیلو او طایفو لکه د هوتکو، ناصرو، بابیانو، نورزیو، بابړو، برېڅو، مومندو، کاکړو، بلوڅو، ترینانو، الکوزیو او نورو قبیلو خانانو، مشرانو او

(۱) د ایران تاریخ، سرجان مالکم، ۱۹۸ مخ.
(۲) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۰۶ مخ، تتمة البیان، ۷۸ مخ سرجان مالکم، ۱۹۸مخ. د پښتنو تاریخ، لومړی توک، ۵۳ مخ.
(۳) د پښتنو تاریخ، لومړی توک، ۵۴ مخ.
(۴) مانجه: د اوسني کندهار په شمال شرق کښي تخمیناً د شلو میلو په فاصله د کابل پر لوی سړك پرته او له ښارصفا سره پیوسته ده. دغه ځای به غالباً د میرویس په ښځي (د جعفرخان سدوزي په لور) پوري اړه درلودله.

مخورو ګډون کړی و، چي رېدیخان مومند له هغوی څخه د دوولسو تنو رئیسانو نومونه یادوي:[۱]

**۱- سیدال خان ناصر:** د هوتکي دوري له مشهورو جنرالانو څخه دی، چي د ده د حال شرحه به ددې کتاب د هوتکي دورې د سپه سالارانو په برخه کښي راشي.

**۲- بابو جان بابی:** چي د ده د حال شرحه هم د کتاب په پای کښي راځي.

**۳- میاجي:** ملاپیر محمد هم د هوتکي دورې له مشهورو کسانو څخه دی، چي د حال شرحه يې ددې کتاب د نومیالیو په برخه کښي لیکل شوې ده.

**۴- بهادر خان:** دغه سړی به ( د هوتکي دورې د نومیالیو په برخه کښي ) وروسته وپېژنئ.

**۵- یوسف خان:** د سیوري سیمې له هوتکي خانانو څخه دی، چي له بده مرغه په بل مأخذ کي يې یادونه نه ده شوې.

**۶- عزیز خان نورزی:** چي رېدیخان يې د (د لارام پهلوان) په نامه یادوي، خو د حال شرحه يې څرګنده نه ده.

**۷- ګلخان بابړ:** د بابړو طایفې له خانانو څخه و، چي په نورو سرچینو کي يې څه یادونه نه ده شوې.

**۸- نورخان برېڅ:** د برېڅو قبیلې له خانانو څخه دی او بنایي چي د شورابک یا بلوچستان سیمو له برېڅو څخه وي.

**۹- نصروخان الکوزی:** د جلدک سیمې د الکوزیو د مشهورې قبیلې له مشرانو څخه و.

**۱۰- یحیی خان هوتک:** د میرویس ورور دی.

**۱۱- محمد خان هوتک:** د میرویس وراره دی، چي وروسته په پښنور کښي د ( حاجي انګو ) په نامه مشهوره شوی دی[۲]!

(۱) پټه خزانه، ۱۴۵ _ ۱۴۷ مخونه.

(۲) محمد خان د میرویس وراره سربېره پردې چي د آزادۍ په جهاد کښي له پلار او تره سره ملګری و، وروسته يې په پښنور کښي د حاجي انګو په نامه ډېر شهرت پیدا کړ، ډېره موده يې د جخنتران په حدودو کښي حکمراني درلوده او زوی يې عبدالغفورخان پر کلات باندې د نادرشاه افشار د چپاو پر وخت حاکم و او د عبدالغفورخان ورور عبدالرسول خان د نادرشاه په مقابله کښي مېړانې وکړې او په شیبار نومي ځای کښي له هغه سره ونښت. حیات افغاني، ۲۵۷ _ ۲۶۴ مخونه. پټه خزانه، ۱۴۷ مخ.

**۱۲- یونس خان کاکړ:** بنايي د ( ږوب ) او یا ارغسان له خانانو څخه وي.

هغه کسان چي د رېديخان په محمود نامه کښي يې نومونه راغلي، همدغه دوولس تنه وو، خو د افغان او پارس د جنګ کتاب ليکوال پر دغو کسانو سربېره د بلوڅ قوم ملکان، مشران او د ترينانو قبيلي مشران هم يادوي.

لنډه دا چي دغه جرګه يوه داسې جرګه وه چي د قوم د آزادۍ کړنلار يې تثبيت او مهر کوله او وروسته تر دې چي ټولو پر قرآن پاک د وفادارۍ قسم وکړ؛ نو ميرويس هغه کاغذ چي د اعتمادالدوله مهر ورباندي لګيدلی و، د جرګې غړو ته وښود او دا يې هم وويل چي: ( د پارس حکومت هم له ګرګين څخه خوښ او راضي نه دی او د ده په ليري کېدو او له منځه تګ باندي خوشحاله دی. نو د دې لپاره چي قوم ته د ده له ظلم او ضرر څخه نجات ورکړو، تاسي ټول بايد له ما سره متفق، متحد او يوه اراده شئ.[1]

ټولو خانونه د ميرويس د اوامرو تابع بلل او د خپلې هر ډول مرستې، فداکارۍ او يووالي پوره ډاډ يې ورکړ. نو بيا وروسته ميرويس د خپلي نقشي له ترتيب څخه هغوی ته معلومات ورکړل او دوی هم د ده مدبرانه نقشه خوښه کړه او ويې منله. جرګه ذ هغې ورځي تر مازيګره پوري روانه وه او د جرګو له ګډونوالو څخه هر يوه ته دندې وټاکل شوې او هم يې له خانانو يو دوو تنو ته امر ورکړی و، چي د ماليو له ورکولو انکار وکړي او خپلې طايفې[2] د ګرجيانو په وړاندي پورته کړي، چي د ګرګين د

---

(۱) جنګ افغان و پارس، ۴۵ مخ.

(۲) د طايفې په نوم کښي هم اختلاف دی، د جنګ افغان و پارس کتاب ليکوال ليکي چي د بلوڅو طايفې مشرانو ته امر شوی و ( ۴۵ مخ ). سلطان محمد او شېرمحمد د کاکړو قبيلي نوم يادوي ( تاريخ سلطاني ۷۲ مخ ـ خورشيدجهان ۱۳۲ مخ ). خو ميليسن او قاضي عطاالله خان د ترينانو قوم يادوي (دافغانستان تاريخ، ميليسن، ۲۰۷ مخ. د پښتنو تاريخ، لومړی ټوك ۵۴ مخ.)

عسکرو یوه برخه د کندهار له مرکز دباندې لاړه شي.[1] دغه ډول د ګرګین د له منځه وړلو د لومړي اقدام لپاره وړ ترتیبات او تدارکات ونیول شول، د جرګې په پای کښې میرویس بیا د رحمان بابا دیوان را واخیست او ویې ویل چې: ( بنه ده چې دا خل بیا هم له رحمان بابا څخه مشوره وغواړو).
نو دیوان یې ببرته کړ او دغه بیتونه راووتل:

چې آسمان یې مخ پټ کړی په سحاب و    خدای ﷻ وما و ته ښکاره کړهغه لمربیا
چې رقیب را تـه ترلـی پـه زنځیـر و    خپل حبیب راباندې پرانیست هغـه ور بیا
پـه وصـال یـې منتبـار اوسـه رحمانـه    په صدف کښې دخل نـه شته د ګوهر بیا

لکه چې محمد هوتک روایت کوي، پـه هغـه ورځ قدرتـي پـر آسـمان وریځ هم وه، هغه مهال چې میرویس د رحمان بابا بیتونـه لوسـتل، لمـر لـه وریځو راښکاره شو او خلکو هغه د پاک خدای ﷻ فضل او معاونت وبالـه او میرویس وویل: "دغه دی د خدای پاک ﷻ لطف او مهرباني هم له موږ سـره ملګرې ده. هغه وخت رسېدلی، چې توري له تیکو وباسو او خان له دښمنه خلاص کړو."[2]

## لومړنی اقدام:

کله چې د بلوڅو او کاکړو قومونو سرداران له جرګې څخه ببرتـه خپلو سیمو ته لاړل، د جرګې له لاربنوونو سره سم یې سملاسي د ګرجیـانو په مقابل کښې په نافرماني او بې اطاعتي لاس پوري کړ او د مالیو له ورکولو یې انکار وکړ.
ګرګین چې ناڅاپه له داسي ښـکاره انکار او مخالفت سره مخـامخ شو، سخت په غوسه شو او سملاسي یـې د ګرجي عسکرو ځواکمنه ډله چې یوازې یې د مـهمو او سـختو اقدامـاتو لپـاره سـاتله د بلوڅانـو او کـاکړو د

---

(۱) د واقعې د پېښېدو په ځای کښې هم لختـلاف دی، شېرمحمد او سلطان محمـد ارغسـان سیمه ښیي، خو قـاضي عطـاء الله خان پښيـن علاقـه لیکـي او دغـه وروستی قول چې د میلیسن عقیـده هم ورتـه نژدې ده، نسبتاً حقیقت نـه نژدې ښکـاري، ځکه چې د وروسـتیو پېښو لـه مخې جرګې غوښتـل چـي د ګرجیـانو عسـکر لـه کندهـار ښاره وړاندې او لـیري لاړ شي او پښیـن د ارغسـان پـه نسـبت لیري دی.
(۲) پټه خزانه، ۹۷ مخ.

وهلو او ماتولو لپاره ماموره کړه او دغه عسکر هم بې له ځنډه په ډېر قهر او غوسې هغې خوا ته روان شول.

میرویس چې په تینګه یې حالاتو ته کتل، سملاسي یې د کندهار د اطرافو د قبایلو رئیسانو او مشرانو ته خبر ورکړ او د افغاني آزادۍ غوښتونکو ځوانانو یوه ډله یې را وغوښته او له هغه پروګرام سره سم یې چې پخوا د جرګې له خوا سنجول شوی و، د ګرګین په وژلو او له منځه وړلو پسې واچوله، چې یوه شپه یې ناڅاپه د آزادۍ غوښتونکو په مرسته پر ګرګین اود ده پر ساتونکو چپاو وروړ او ټول یې ووژل، چې یو تن هم ور څخه روغ پاتي نه شو او د هغو زرګونو بېګناهو افغانانو د وینو انتقام د ګرګین له وینو څخه پیل شو، چې د ګرګین د شخصي غوښتنو او د یرغلګرو د استعماري غرضونو قرباني شوي وو.

بېلابېلو تاریخ کښونکو د ګرګین او د ده د ملګرو د وژلو موضوع لیکلې ده: سرجان مالکم، میلیسن، شېرمحمد او سیدجمال الدین افغان دغه ټول سره متفق دي او لیکي:

میرویس له ښاره دباندي په یوه باغ کښي دګرګین لپاره مجلله مېلمستیا کړې وه او ویې ویل چې غواړم د قوم یو دوه تنه مشران هغه ته وروپېژنم[1] خو پخوا له دې چې ګرګین له خپلو ساتونکو سره باغ ته ورسېږي، ټولي لارې او مهم ځایونه د افغاني آزادۍ غوښتونکو له خوا تر څارني او مراقبت لاندي نیول شوي وو او آزادۍ غوښتونکي په ځانګړو پټو ځایونو کښي د میرویس اشارې ته په تمه ناست وو، د میرویس او نورو افغاني خانانو له خوا د ګرګین، دده ملګرو او یو ه ډله وسلوالو عسکرو تود هرکلي وشو.

څرنګه چې ګرګین او ملګري یې د شرابو په څښلو عادي وو. په دغه مېلمستیا کښي هم خراساني او نور خوندور شراب په زیاته پیمانه برابر شوي وو، له بلل شویو کسانو څخه هریو دومَره شراب وڅښل چې بېخي بېهوښه شو او دغه شراب د سیدجمال الدین افغان په اصطلاح

(۱) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۰۸ مخ.

داسي شراب وو، چي يې د مرګ په جام کښي چي ساقي يې پخپله ميرويس و، وڅښل.

هغه وو چي ميرويس پر ټاکلي وخت د انتقام اخيستلو اشاره وکړه او ګرګين او ملګري يې داسي له تېغه تېر کړل، چي يو هم ژوندی پاتي نه شو او د انتقام په توره يې له منځه يووړل، هغه لومړنی شخص چي د ميرويس په امر يې پر ګرګين باندي حمله وکړه او هغه يې وواژه (مرادخان) مخنث و.[1]

خو د پټې خزانې ليکوال او د افغان او پارس دجنګ کتاب ليکوال، سلطان محمد، حصام الدوله او نور د مېلمستيا يادونه نه کوي او د ګرګين د وژلو پېښه بل ډول بيانوي؛ د ساري په توګه د پټې خزانې ليکوال چي دهغې دورې معاصر و او بايد پر قول يې ډېر اعتماد وشي، په مجهول او مجمل ډول ليکي: "ولس سره را جمع شو او د ميرويس په مرسته کندهار ښار ته ننووتل او دښمنان يې ووژل"[2].

د جنګ افغان و پارس کتاب ليکوال ليکي: "وروسته تر دې چي د بلوڅو د نافرمانۍ خبر ګرګين ته ورسېد، نو سملاسي يې خپل افسران راوغوښتل او د مقابلې امر يې ورکړ او ويې ويل چي زه هم در رسېږم، وروسته تر هغه يې ميرويس ته مخ ور واړاوه او ويې ويل: تاسي هم ژر خپلې وسلې را واخلئ او له خپلو کسانو سره زما ملګري شئ، چي لاړ شو او له ګرجي عسکرو سره يو ځای شو او پخوا له دې چي دښمن پوه شي، حمله ور باندي وکړو". ټول کارونه په دې حکم سرته ورسېدل. ميرويس په پټه بلوڅي مشرانو ته خبر ورکړ او هغوی يې د ګرګين له ورتګه خبر او بيدار کړل او پيغام يې ور ولېږه چي:" دغه ده هغه موعوده ورځ او يادي کړئ خپلې هغه وعدې چي کړي مو وې) ميرويس په ټاکلي ځای کښي له دريو زرو تنو افغاني ځوانانو سره د ګرګين د رسېدلو انتظار

(۱) خورشيدجهان، ۱۳۲ مخ. جهانکشای نادري، ۶ مخ. د تتمة البيان ژباړه، ۷۸ مخ. سرجان مالکم، ۱۹۸ مخ.
(۲) پټه خزانه، ۹۷ مخ.

درلود، کله چې ګرګین له خپلو زرو تنو ساتندویو عسکرو سره ورسېد او د افغاني عسکرو د دوو کتارونو ترمنځ ولاړ و، د میرویس په اشاره په بېړه له هر لوري محاصره شو او د فرعون په شان د مرګ په سیند کښې ولوېد او له ټولو عسکرو سره ووژل شو، تر دې چې یو تن هم پاتې نه شو چې کندهار ته د ګرګین د وژل کېدو خبر ورسوي[1].

خو سلطان محمد او نواب حصام الدوله لیکي: "یوه شپه ګرګین خان کاکړو قوم ته د اخطار ورکولو په موخه د ارغسان د "ده شیخ"[2] په منزل کښې و، میرویس له یوې ډلې غلجیانو سره هغه تعقیب کړ او یوه شپه یې ورباندې حمله وکړه، شهنوازخان یې ونیو او د خپلو اعمالو په سزا یې ورساوه"[3].

***د دې اقدام نېټه:***

تاریخ کښونکي د میرویس په مشرۍ د کندهار د آزادۍ غوښتونکو د لومړني اقدام او یا په بله وینا د ګرګین د وژل کېدو د نېټې په ټاکنه کښې اختلاف لري: شېرمحمد، نواب حصام الدوله او د داستان ترکتازان هند لیکوال ربښتینې نېټه د ۱۱۲۰ هجري کال د بلا ګانو ((صفرې)) میاشت لیکلې ده[4] سلطان محمد، میلیسن، نورالله لارودي او محمدمهدي ۱۱۲۱ ه کال لیکلی دی.[5] او خافي خان چې د خپلې زمانې پېښې یې تر ۱۱۳۵ هجري کاله پورې لیکلې دي او د هوتکي پاچایانو معاصر دی، لیکلي: په ۱۱۱۹ ه کال د هند په دربار کې محمداعظم شاه ته د ګرګین دوژل کېدو خبر ورسېد.[6] خو یوازې هغه کتاب چې مور له اشتباه څخه

(۱) جنګ افغان و پارس، ۴۶ مخ.

(۲) د حزین په کلیاتو کښې (د شیخ کلي ښکارګاه) ضبط شوی، ۵۱ مخ. خو ماثرالامرا (ده سنج) لیکلی دی، درېیم ټوک، ۷۰۱ مخ.

(۳) ماثرالامرا، درېیم ټوک ۷۰۱ مخ. تاریخ سلطاني، ۷۲ مخ.

(۴) خورشیدجهان، ۱۳۲مخ. ماثرالامرا، درېیم ټوک، ۷۰۱مخ. ترکتازان هند، څلورم کاخ ۱۴۴ مخ.

(۵) تاریخ سلطاني ۷۲ مخ. د افغانستان تاریخ، میلیسن. ۲۰۸ مخ. زندګاني نادرشاه، ۹ مخ. دره نادره، ۲۹ مخ.

(۶) منتخب اللباب، دویم ټوک، ۶۴۳ مخ.

خلاصوي او د ټولو تاریخ کښونکو په نسبت سم او د اعتماد وړ دی، هماغـه د پټې خزانې کتاب دی، چې لیکوال یـې پښتې په خپلـو سترګو کتلـي او خپله حاضر و او هم یـې له خپل پلاره مستقیماً روایت کړي دي، دی لیکـي چې: مـیرویس دغـه اقـدام د ۱۱۱۹ هجـري کـال د میـاني ( ذوالقعـدې ) میاشتې په ۱۹ نېټه وکړ.[1] او هغه څه چې رېدیخان مومند د محمودنامې پـه منظومه کښي ویلي دي، هغه هم ددې نـېټــې تـائید کـوي.[2] نـو د پټــې خزانې په شـهادت د ۱۱۱۹ هـ کـال د میـاني میاشـتې ۱۹ مـه ورځ بـاید د یرغلګرو د مشر "ګرګین" د وژل کېدو نېټه او یا په بله وینا عموماً د افغانانو د ملي نهضت او په ځانګړې توګه د هوتکیانو دولت د تاسیس نـېټه وشـمېرل شي. ځکه چې له همدغې نېټې څخـه د غزنویـانو، غوریـانو او سـوریانو د شاهنشاهیت د دورو تر ختمېدو وروسته بیا د لومړي ځل لپاره په افغانسـتان کښي د یو ملي حکومت بنسټ کېښودل شو او افغان ملـت دویم ځل بیـا د یوه ملي او دولتي شخصیت خاوند شو.

### *کندهار ښار ته ننوتل:*

ګرګین ووژل شو، خو کندهار ښار ته ننوتل او نیول لا تر دې وخته پورې کوم آسانه کـار نـه ښکـارېده، ځکـه چـې پـه ښار کـښي ډېر ګرجـي ساتونکي موجود وو او عسکرو یـې د ښار په برجونو، حصارونو او دروازو کـښي ټـینګـ استحکامونه او بشپړه وسله درلوده او کولای یـې شول چې هم لـه میرویس سره مقابله وکړي او هم د ښار افغانان تر ځارنې لانـدې ونیسـي او ډزې وربـاندي وکړي.

له دې کبله باید داسي چاره سنجول شوې وای، چې هـم د ښار خلک د یرغلګرو له ظلمونـو او ګولـی اورولـو او ډزو څخـه خونـدي پـاتي کـېدای او هـم ښار تــه د ننوتلــو پـر وخــت د آزادی غوښتونکــو پــه وړانــدې کــوم مقــاومت خنــثی شــوی نــه وای، هغــه چــاره یــو حربي چل و، چې میرویس د خپلو ملګرو په مشوره په کار واچاوه:

(۱) پټه خزانه. ۹۷ مخ.
(۲) دغه بیت د محمود نامې دی.
(۳) *کال و، یوسل نونس او زر په شمار — خلاص شو له ظلمه د ګرګین کندهار*
*(پټه خزانه. ۱۴۹ مخ).*

پخپله یې د ګرګین جامې او وسله واغوستله او د ګرګین د نورو ملګرو او ساتونکو جامې او وسلې یې افغاني سردارانو او نورو آزادۍ غوښتونکو ته ور واغوستلې او د هغوی پر اسونو سپاره شول او د ماښام په تیاره ( یا د ماښام او ماخوستن تر منځ وخت کې) په هماغه دبدبه او ترتیب چې د ګرګین سپرلۍ درلوده، د کندهار ښار خوا ته را روان شول او درې زره تنه آزادۍ غوښتونکي یې له ښاره دباندې په پټو ځایونو او مورچو کښې کښېنول چې اشارې او امر ته منتظر وي.

د ښار په دروازه کښې ګرجي پوځیانو دوی د ګرګین سورلۍ وګڼلې او پرې یې ښودلې چې دننه ښار ته ننوزي. څرنګه چې میرویس له یوې ډلې افغاني آزادۍ غوښتونکو سره ښار ته ننووت، نو د کلا او حصار پر ساتونکو یې حمله وکړه او د کلا د ساتونکو او دروازو د پهره دارانو تر نیولو وروسته هغه آزادۍ غوښتونکي چې له ښاره دباندې پټ وو، ښار ته ننوتل او ټول ګرجي ساتندوی عسکر یې له پښو وغورځول او ښار یې ونیو.

میرویس د ښار تر نیولو وروسته سملاسي د ښار خلکو ته اعلان وکړ چې: "د خلکو سر و مال په دې شرط په امن او سلامتۍ کې پاتې کېدلای شي چې د ګرګین عسکرو ته پناه ور نه کړي".

د ښار خلک چې له ډېرې مودې د داسې زېري او آواز په تمه وو، ټول له میرویس او آزادۍ غوښتونکو سره یو شول او د یرغلګرو د ورکېدو او له منځه وړلو په هڅه کښې شول.

متجاوزینو چې خلاصون او پناه ځای نه درلود او ټول د مرګ له خطر سره مخامخ وو، که څوک به وتوانېد، نو هغه به تښتېده او په دې توګه کندهار ښار چې له څه مودې را په دېخوا به کله د هند د مغلو په لاس کښې و او کله د پارسیانو په لاس کښې، بیا د افغان ملي حکومت مرکز شو.

وایي چې میرویس په هماغه شپه پاک خدایﷻ ته د شکر سجده وکړه اوویې ویل:"خدایه! دغه هماغه کار و چې مور مې راته سپارلی او وصیت یې کړی و، دغه ستا د بندګانو خدمت و، چې

پر ځای مي کړ.[1]

### درییمه جرګه او د میرویس لومړنی وینا :

د هغې شپې په‌سبا میرویس د قوم رئیسان، خانان او سپین ږیري د دریيمې ملي جرګې د جوړېدو لپاره راوغوښتل او هم یې هغه افغانان چې له ښاره لیري اوسېدل او یا یې د یرغلګرو په تېره بیا د ګرګین د ظلمونو لـه لاسه د ښار او خپلو کورونو او کلیو پرېښودلو ته مجبـور شـوي او پـه غرونـو کښې یې استوګنه کوله، راوبلل او بلنلیکونه یې ور ولېږل چې: "مور فـاتح شولو- ژر راشئ او له مور سره یو او متحد شئ." [2]

کلـه چـي د قـوم مشـران مـیرویس تـه را ټول شـول مـیرویس د دریيم ځل لپاره ملـي جـرګه جـوړه کـړه او د ګرګین تـر لـه منځه وړلـو وروسته یـې خپله لومړنی وینا په ډېرو سـاده او عامیانـه الفـاظو وکـړه او پـه اغېزناکه لهجه یـې وویل:

"ای افغان قومه! د ایمان له مخې وایم چې له دغـو ټولواقداماتو څـخه زما مقصد یوازي او یوازي ستاسـو آزادي ده، ځکـه چـي آزادي یـو داسې قیمتي مال و نعمت دي، چې د هغه د ترلاسه کولـو لپاره هـر ډول چلونه او نیرنـګونه روا دي. ګرګین له منځه لاړ، البتـه د کندهـار د افغانانو لپاره چې تل یـې له ځواکمنو مغلو سره پنجه ورکړي او مقابلـه یـې کـړې ده، د هغو پوځونو ماتول او پر شـاوهل چـې د اصفهان لـه مسلیانو څخـه تشکیل شوي دي، دومره ستونزمن کار نه دی.[3]

که چیري له ما سره متحد، یو لاس او یـوه اراده شئ او زمـا مـلا راوتړئ، نو د ذلت او اسارت زنځیر به له خپلو غـاړو څخـه لـیري کـړو او د آزادۍ او عزت بیرغونه به د هېواد په هر ګوټ، ځنډو او د نـړۍ د ملتـو تـر منځ ودروو او د پردیو د واکدارۍ جغ به له خپلو اوږو څخه لیري کړو[4] پـر پاک خدای ج توکل وکړئ، خپل زړونه خوشحاله کـړئ، پـه داسـي حـال کـښي

(۱) پټه خزانه، ۲۷۷ مخ .
(۲) تاریخ افغانستان، میلیسن، ۲۱۱ مخ .
(۳) د میلیسن تاریخ، ۲۱۰ مخ .
(۴) سرجان مالکم، ۱۹۸ مخ. تتمة البیان ۷۹ مخ .

چي موږ او تاسي پاک نیتونه ولرو، نو بیا کولای شو چي د څښتن تعالیﷻ په مرسته بری ترلاسه کړو...

که چیري د خپل سر و مال له قربانولو څخه ځانونه ونه ژغورو، نو هغه مال او ملک چي لرو یې او یا یې خاوندان کېږو، خامخا زموږ دي او زموږ به وي. آیا دا وړ کار دی چي هغه ټول لاسته راوړي غنیمتونه، بې موجبه له لاسه ورکړو او د نورو واکداري ومنو؟

هیڅکله نه، افغاني لوړ همت په کار واچوئ، چي هغه (څلور طلاوې)[1] چي پارس ته ورکول کېدلې او هغه پیسې او شته چي زموږ له هېواده د پردیو خلکو له خوا وړل کېدل، د ځان لپاره وساتو او ذخیره یې کړو او د نورو مالونو او غنیمتونو په حاصلولو کښي هم هڅه وکړو، چي ځانونه شتمن او خپلې اړتیاوي پوره کړو[2]. سر ببره پردې د دې بېلارې او لار ورکې فرقې له منځه وړل د مسلمانانو د لوړ همت له لوازمو څخه دی او له هغوی سره جګړه د خدایﷻ په لار کې جهاد دی"[3]

میرویس دغه وویل او د حجاز د عالمانو فتوی یې ملي جرګې ته وښودله او ویې ویل: د دې مدعا د رښتینولي او صدق لپاره تر دې ښه او قوي شاهد پیدا کولای نه شم او وروسته یې خپلې وینا ته دوام ورکړ او ویې ویل:

"...رښتیا هم، قوم د اسلام دین او هېواد په لاره کښي ستر خدمت وکړ. څکه یې سکه د مرمرو په ډبرو کښي حک کړه او د قیامت د ورځې لپاره یې له ځانه ښه اوښکلی اثر پرېښود،چي په هغه ورځ به ددوی په ښو عملونو کي حساب شي او ددوی‌دیادولو باعث به وګرځي... د دوی د دغه ښه اثر له

---

(۱) څرګنده نه شوه چي دغه (څلور طلاوې) په څه ترتیب پارس ته لېږل کېدې اود جنګ افغان و پارس کتاب له لیکوال پرته، نورو تاریخ کښونکو په دې باب څه نه دي ویلي.

(جنګ افغان و پارس، ۵۰ مخ).

(۲) جنګ افغان و پارس، ۵۰ مخ.

(۳) سرجان مالکم، ۱۹۹ مخ.

مځې[1] د دوی دې دا ټول خواره مبارک او نوش جان شي، د دوی له هڅو او مېړانې مننه کوم ... خو دا هم باید وویل شي، چې تر دې وروسته پر موږ لازمه ده چې ټول یو لاس او یو زړه شو، ملا وتړو او که چېري په دغه لاره کښې لازمه شي، خپل سر و مال قربان کړو ... ځکه چې دې اقدام صفوي پاچا په غوسه کړی او خامخا به د انتقام اخیستلو لپاره اقدام کوي او په نظامي اقداماتو به لاس پوري کړي او په نتیجه کښې العیاذبالله که چیری لاس یې بر شي او موږ یې تر واک لاندي راشو، نو یقیناً به موږ ټول نارینه له تېغه تېر کړي او زموږ ښځې او اولادونه به بندیان کړي ...[2]

"په دې وخت کښې له افغاني خانانو څخه یو تن له میرویس څخه پوښتنه وکړه: صفوي دولت ډېر ځواک او واک لري او یو ستر دولت دی، په داسي حال کښې چې زموږ عسکري ځواک د هغوی په پرتله ډېرکم دی، نو د هغوی په مقابل کښې به څنګه مقاومت وکړو؟ ".

"میرویس په خواب کې سملاسي دغه کریمه آیت ولوست: (کم من فیئة قلیله غلبة الخ) او زیاته یې کړه: پاک خدای ﷻ زموږ یار او مرستندوی دی او له بلې خوا اوس صفوي دولت د نااهلو په لاس کښې پاتي دی او ډېره موده کېږي چې مخ په زوال روان دی...

هغه مهال چي زه په اصفهان کښې وم، له ټولو حالاتو څخه یې خبر وم، د دولت غړي دوه برخي شوي دي، چي د ټولو رایو او تدبیرونو یو د بل پرضد کار کاوه، هر یو د خپل نفس پلوی و، د ټولو دنده او کسب عیش او عشرت وو؛ دولت او ملت یې هېر کړي دي، د بصیرت له خاوندانو څخه هیڅ یو نه دی پاتي، چي د خپل هېواد د نظام په باب څه ووایي او یا څه وکړي ...

یوه بله آسماني بلا هم ورباندي نازله شوه او هغه د روس د سفیر ایلچي و،چي د شیروان او آذربایجان ارمنیان یې د حکومت په مقابل کي اغوا، نافرماني او بي اطاعتۍ ته تشویقول او په نتیجه کي یې ګرجستان

---

(۱) مقصد د ګرګین د عسکرو پرضد اقدام دی.
(۲) جنګ افغان و پارس، ۵۰ مخ.

د روسیې تابع شو او د اصفهان شاهي دولت د دې بلا د پیدا کېدو او د دښمنانو د چپاو له کبله په لوی بحران کښي و،نو په داسي حال کښي چي وضیعت یې داسي دی، آیا بیا هم ممکنه ده چي د هغوی له خوا پوره تدارکات وشي؟".

په پای کښي میرویس خپله وینا په داسي اغېزناکو کلمو پایته ورسوله او ویې ویل: "بیا هم هغه څه، چي د افغاني غیرت او محمدي شریعت مقتضا وه، وویل شول، اوس که چیري په تاسو کي څوک د غلامۍ ذلت ته د آزادۍ تر عزت ترجیح ورکوي او ځان د آزادۍ په دغه مبارک مزي چي موږ ته له آسمانه راغلی دی، نه تړي. یعنې په آزادۍ باندي خوښ نه دي او د خپلو مهربانو ورونو تر متابعت د پردیو ظالمانو تابعیت خوښوي، آزادانه دي ووایي هیڅوک به وربانديې کار ونه لري او نه به یې د تکلیف او کړاو سبب شي، خو باید په څرګند ډول ووایم چي له موږ څخه دې بیا د استوګنې تمه هم ونه لري او باید زموږ له خاوري او قومي ریاست څخه لاړ شي او د کوم ظالم پاچا تر سیوري لاندي دي استوګنه غوره کړي."(۱)

د قوم مشرانو د میرویس وینا د زړه په غوږونو په پوره لېوالتیا سره واورېدله، په تېره بیا چي له یوې خوا یې د هغوی افغاني احساسات تحریک کړي وو او له بلې خوا یې دغه اقدام له محمدي شریعت سره سم وموند او بلې خوایې د هغې کرکې او نفرت په لحاظ چي د یرغلګرو او خونخور ګرګین له ظلمونو څخه درلود او هم د افغاني طبیعت په غوښتنه، نو له ډېرې مودې د آزادۍ تږي او لېوال وو او داسي ورځ یې له پاک خدای ﷻ څخه غوښتله، له میرویس سره یې کلک تړون وکړ او د ده پر دغه ملي اقدام باندي یې آفرینونه وویل او قول یې ورسره وکړ چي د خپلي وینې تر وروستي څاڅکي پوري به د خپلې آزادۍ په ساتنه کښي هڅه وکړي او سر به د ده له فرمان

(۱) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۱۱ مخ. سر جان مالکم، ۹۹ مخ. تتمة البیان ۷۹ مخ. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۶۵ مخ.

څخه ونه غږوي[۱].

میرویس چې عامه رأیه يې له مرام سره برابره ومونده، هغوی ته يې په لوړ آواز وویل:

"زما ورونو! خدايي انتقام نژدې دی، افغاني بهادران بايد د زور او ظلم تر بار لاندي لاړ نه شي"[۲].

په هماغه ورځ د قوم مشرانو، میرویس پخپل ریاست وټاکه، که څه هم میرویس په حقیقت کښي د پاچا حیثیت درلود، خو ده د پاچايي له نامه څخه انکار وکړ او د سلطنت نغاره يې پخپل نوم و نه ډنګوله او د حکومت بیرغ يې و نه دراوه.[۳] یوازي يې د ملي رئیس په نامه بسنه وکړه، چي دغه هم د میرویس له ځانګړتیاوو څخه و.

***غنیمت اخیستل:***

د ګرګین تر وژل کېدو څلور ورځې وروسته د ښار د کلا ساتونکو له لیري څخه ولیدل، چي هغه ډله ګرجي عسکر چي د بلوڅي او کاکړي قبیلو د ټکولو او راپرځولو لپاره لېږل شوي وو، د ښار خوا ته را راون دي، دغو عسکرو د یو کال د مالیې پر پیسو سربېره يې ډېر هغه مالونه او ولجې هم له ځان سره راوړې وې، چي هلته يې له خلکو لوټ کړي او په چور چپاو لاسته راوړې وې. هغوی له پېښې خبر نه وو، د ښار خوا ته نژدې کېدل. کله چي نژدې شول، ناڅاپه يې ولیدل چي د ښار له خوا د توپونو او ټوپکو په ګولیو ویشتل کېږي، په دغه وخت کښي پوه شول چي ګرګین او ښار له لاسه وتلی، نو په سخت مقاومت يې لاس پوري کړ، په پای کښي د غنیمتونو او پیسو په پرېښودلو مجبوراو مخ په تېښته شول او د افغاني آزادۍ غوښتونکو له خوا د میرویس په سالارۍ د هلمند د رود تر غاړې پوري تعقیب او ډېر زیانونه ور واړول شول او یوازي اتلسو تنو ځانونه له مړیني خلاص کړل او اصفهان ته ورسېدل او پېښه يې د اصفهان درباریانو ته بیان کړه[۴].

(۱) (۲) زندګاني نادر شاه، لارودي، ۱۰ مخ.
(۳) تاریخ سلطاني، ۷۲ _ ۷۳ مخونه.
(۴) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، ۵۵ مخ. تتمة البیان، ۷۹ مخ.

### کار پیلول :

میرویس چې د ګرجي عسکرو له تعقیب څخه بېرته کندهار ته راغی سملاسي يې په دفاعي تدبیرونو او کورنیو اصلاحاتو پیل وکړ او هغه وسله چې موجوده وه او یا یې له ګرجي عسکرو څخه په غنیمت نیولې وه، پر آزادۍ غوښتونکو ووېشله او هم یې د وسلو جوړولو کارکوونکي، ځینې د نوې وسلې جوړولو او ځیني د توپک د باروتو په تیارولو مامور کړل.[۱] د قوم خانان او د آزادۍ غوښتونکو رئیسان یې د دفاعي مورچو او استحکامونو په جوړولو او تینګولو وټاکل او خپله میرویس د ښار د کلا د دېوالونو ودانولو او استحکام ته متوجه شو، تر دې چې د میلیسن په قول تر لږې مودې وروسته یې منظمه او باقاعده توپخانه جوړه کړه او افغاني عسکر یې منظم کړل.[۲]

### د بهرنیو اړیکو تینګول :

میرویس سره له دې چې پر کورنیو اصلاحاتو بوخت و، بهرني اړیکي یې هم په نظر کښي درلودل او پرهمدې بنسټ یې تر ټولو لومړی وغوښتل چې له دوو ګاونډیو صفوي او مغلي حکومتو سره شریفانه اودوستانه اړیکي ټینګ کړي، نو لومړی یې په مؤدبانه او شریفانه الفاظو او کلماتو صفوي پاچا ته یو لیک ولیکه او په هغه کښي یې د ګرګین ظلمونه او یرغلونه او د آزادۍ غوښتونکو تصمیم او اقدامات بیان کړل او له صفوي دولت څخه یې غوښتي وو، چې په افغاني خاوره کښي د میرویس حاکمیت په رسمیت وپېژني او په ناحقه د عسکرو د لېږلو اقدام او په افغاني چارو کښي لاسوهنه و نه کړي او که نه، نو ټول افغانان، که غټ دي او که واړه د مقابلې لپاره حاضر دي او که چیري داسي اقدام و کړي او د افغاني خاورې حاکمیت میرویس ته وسپاري، نو دی به د افغانانو او فارسیانو ترمنځ د دوستانه روابطو د ټینګولو لپاره هڅه وکړي.

---

(۱) دا د میلیسن او نورو قول دی، چې ترې معلومېږي، هغه وخت هم په کندهار کښي د وسلو جوړولو صنعت موجود و.

(۲) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۱۱ مخ. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۵۶ او ۵۷ مخونه.

**دغه مضمون د ليک مفهوم و :**

*مروت پناه عنايت مآب سلطان !*

"هغه وخت چي د پاچا په اجازه په اصفهان کښي اوسېدلم، ما درته ويلي وو، چي بايد د ګرګين خان احوال او اوضاع تر څارني لاندي ونيول شي او که ونه نيول شي، نو د ده بدچلندي به په پای کي د فتنې سبب شي، دغه دی زما پېشګويي رښتيا شوه. کله چي کندهار ته ورسېدم ډېره موده نه وه تېره، چي افغاني قبايل را ټول شول او په دې وجه چي د ګرګين د ډېرو ظلمونو زغم يې ونه شو کړای، په پای کښي يې هغه تر کلا دباندي راوايست او ويې واژه او تر هغه وروسته يې د ښار کلا هم ونيوله او وروسته يې بيا زه د ځان حاکم او رئيس وټاکلم او اوس يې لويې لويې دلې جوړې کړې دي.

دا هم د شکر ځای دی، چي په داسي نازک وخت کښي يې دغه بنده ټاکلی دی، ځکه تر هغه مهاله چي زه د دوی مشري پر غاړه ولرم، د الو ګولو او لانجو په دفع او رفع کښي به د زړه له اخلاصه هڅه وکړم او که د خدای‌تعالیﷻ رضا وه، د رأيې او تدبير په واسطه به هره ستونزه آسانه شي.

نو که چيرې په دې هکله تاسو ته وويل شي هغه ته څه اهميت مه ورکوئ. له دې خوا ټول کارونه او حالات ما ته راوسپارئ او نه ښايي چي تلوار وکړئ او د غرض د خاوندانو په لمسون عسکر راوليږئ.

که چيري عسکرراوليږل شي، نو ټول افغانان له کوچني څخه نيولې تر غټ پوري ټول د مقابلې لپاره حاضر او تيار دي او له شاهي عسکرو سره به مقاومت او مقابله وکړي او په قتل او قتال به لاس پوري کړي او يا که چيري ډېر عسکر راوليږئ، نو افغانان به د ژوند د ساتلو لپاره د هندوستان له حکومت څخه هم مرسته وغواړي او ځان به د هندوستان حکومت په څواک قوي کړي، لکه چي دغه ډول خبري د دوی زياترو له خولې هم اورېدل کېږي.

لنډه دا چي لازمه ده د دې ستونزمنې مسالې په حل کښي له تلواره کار وانه خلئ، بلکې له سنجش او فکره کار واخلئ او مصلحت په دې کښي دی، چي د دې څوا نظام ما ته راوسپارئ او دغه ټکی ډېر مهم هم دی".[۱]

## د اصفهان دربار استازي (نمايندګان):

سلطان حسين صفوي او درباريانو يې د دې پرځای چي د افغان ملت په غوښتنه د ميرويس ملي رياست په رسميت وپېژني او د افغانانو د آزادۍ پر طبيعي او روا حقوقو اعتراف وکړي او ورته قايل شي، له غرور او زوربښودنې څخه يې چي د يرغلګرو او غاصبانو خانګړنه ده کار واخيست او د ميرويس او د آزادۍ غوښتونکو په تهديدولو او ويرولو يې اقدام وکړ او لومړی يې د دغه کار لپاره محمدجامي نومی سړی[۲] د ايلچي په توګه کندهار ته ولېږه، چي ميرويس او افغاني آزادۍ غوښتونکي دصفوي دولت له واک او څواک څخه ووېروي او دوی د صفوي سلطان مطابعت ته راوبولي.

دغه نماينده هم چي څنګه کندهار ته را ورسېد، د صفوي دولت د لويوالي او جلال او د هغه د څواک په هکله چي د افغانانو د تباهۍ او بربادۍ لپاره يې درلود، ډېري خبري وکړې او ميرويس ته يې هم په نصيحت او وعظ پيل وکړ او ده ته يې د دې اقدام د بدې پايلې داستانونه وويل، چي که چيري د دغو وېرولو او تهديدولو په اثر وکړای شي د آزادۍ غوښتنې مفکوره د افغانانو له مغزو څخه ليري کړي.

خو څرنګه چي د محمدجامي دغه ويناوي د افغاني آزادۍ غوښتونکو د احساساتو مخالفي وې او بدي پرې لګېدې، نو مېرويس د قوم په نمايندګۍ دغه ايلچي ته داسې رډ ځواب ورکړ:

"ته دا خيال کوې چي عقل او حکمت يوازي په عيش او عشرت

---

(۱) جنګ افغان و پارس.

(۲) قاضي عطاء الله (جانيخان) ليکلی، د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۵۸ مخ.

او ناز او نعمت کښې دی؟ او یا یوازې د هوسا خلکو پـه دمـاغ کـښې ځای لري؟ او زمونږ په غرنیو سیمو کښې نه شته او نه موندل کېږي؟.

نه! زمونږ په غرنیـو سـیمو کـښې هـم هوښیـار، د عقـل او حکمـت خـاوندان شـته، کـه چیري ستاسـو پـاچـا کـولای شـول، چـې یـو کـار ترسره کړي، نو دغو بې ګټو خبرو ته به اړ نه و."(۱)

نو وروسته یې د اصفهان دربار د ایلچي په بندي کولو امر وکړ او لکه څنګه چې میلیسن لیکي: هغه مهم مقصد چـې میرویس د ایـلچـي لـه بندي کولو څخه درلود، دا و چې صفوي دولت په دې بـاندي پـوه کـړې چې: افغان ملت د آزادۍ غوښتنې لوبه په پوره جدیت سره پیل کړې ده او د خپلواکۍ هغه بیرغ چې میرویس درولی، نور کښته کېدونکی نه دی او هـم د صفوي دولت ژمنو او ګواښونو د افغانانو پر اروا باندې کوم اغېز نه لري.(۲)

خو د میرویس په دې کار هم د اصفهان دربار د موضوع جدیت ته پاملرنه ونه کړه. کله چې یـې لومړی نمـاینده بېرتـه ورنـه غـی، نـو دویم نماینده (د هرات حاکم محمدخـان) یـې چـې د حـج پـه سـفر کـښې لـه میرویس سره ملګری و، د صفوي پاچا د نماینده په توګه میرویس ته راولـېږه او یقین یې درلود، چې د ده دوستي به میرویس لـه ملـي هـوډ او موخـې څخه راوګرځوی...

خـو هغـه ورځ چـې دا نمـاینده کندهـار تـه ورسـېد او مـیرویس یې د صفوي دولت اطاعت او متابعت ته وباله، نو میرویس په ځواب کښې ورته وویل:

"خدای تعالیﷻ ته شکر وکړه چې ستا د ملګرتیـا او رفـاقت حـق مانع دی او که دغه نه وای، نو تا به هم د هغه بل په شان خپـل پـاداش او سزا موندلې وای، خو ته په دې یقین وکړه چې: زمرو زنځیرونه وشـکول او د انتقام توري یې ایستلي دي، تـر هغـه وختـه پـوري بـه بېرتـه پـه تیکـو کـې وا نـه چـول شي، چـې ستاسـو پـاچـا مـات او ستاسـو هـېواد

(۱) د تتمة البیان ژباړه، ۸۰ – ۸۱ مخونه. تاریخ ایران، سرجان مالکم، ۱۹۹ مخ.
(۲) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۱۳ مخ.

زبر او زبر نه شي، خدايي انتقام نږدې دى، افغاني بهادران د منتقم (انتقام اخيستونکي) د لاس آلې دي، چې د ملحدانو د سزا لپاره يې ټاکلي دي."(۱)

که څه هم له محمدخان سره يې د خپلې پخوانۍ ملګرتيا له کبله ښه چلند وکړ، خو بيا يې هم حکم وکړ چې دى دي د يو درانه مېلمه په توګه په کندهار کښې وساتي.

کله چې دغه خبر د اصفهان دربار ته ورسېد، نو د صفوي دولت اراکين د موضوع جديت ته ځير شول او پوه شول چې نور نه شي کولاى د خولې د تهديدونو په لېږلو سره افغاني آزادۍ غوښتونکي قانع او تابع کړي او افغاني خاوره بيا تر خپل استعمار(ښکېلاک) او استثمار(زبېښاک) لاندې راولي. نو د افغانانو د تباهۍ او د خاورې د خپلولو او د آزادۍ د سلبولو لپاره يې په وسلوال اقدام لاس پورې کړ او په افغاني خاوره کې يې د نظامي تېري او تجاوز ترتيبات ونيول.

تر دې وخته پورې د صفوي دولت يوې نظامي ډلې پر هرات باندې واکمنه وه. صفوي دولت په ( ۱۱۲۲هـ - ۱۷۱۰م) کال دې ډلې ته امر وکړ چې د کندهار پر آزادۍ غوښتونکو يرغل وکړي، کله چې امر ورسېد، نو د يرغلګرو پوځيان چې په هر ډول وسلو سمبال وو، د کندهار پر خوا روان شول.

خو ميرويس مخکې له مخکې د هر ډول دفاع لپاره ځان تيار کړى و او د يرغلګرو له دغه تېري او حرکت څخه بې خبره نه و، نو د پنځو زرو تنو آزادۍ غوښتونکو د مقابلې لپاره ووت او د دفاع تر سختې جګړې وروسته يې د يرغلګرو عسکرو ته سخته او فاحشه ماتې ورکړه او يرغلګر تر درنو تلفاتو وروسته په تېښته شول.

تر دې ماتې وروسته د صفوي دولت منظمو عسکرو په اتلسو مياشتو کښې څلور حملې وکړې او په څلورو واړو حملو کښې له ماتې او ناکامۍ سره مخامخ شول. څرنګه چې په وروستۍ حمله کښې د تبرېز د حاکم محمد خان تر قومندې لاندې پنځه زرو يرغلګرو عسکرو د پنځه سوو تنو

(۱) سرجان مالکم، ۱۹۹ مخ.

افغاني آزادۍ غوښتونکو په وړاندې د مقاومت توان نه درلود او تر زرو تنو زيات تلفات يې ورکړل، ان په خپله دغه قوماندان له دريو تنو زامنو سره د آزادۍ غوښتونکو لاسته ورغی.[1]

او د محمدمهدي د ليکنې له مخې: " ميرويس د فراه تر ( دلخک او دلارام ) پورې ځايونه پخپل هېواد پورې وتړل او له دلارام سره مقصد لاسته ورغی."[2]

دغو پرله پسې ماتو د صفوي دولت قهر او غوسه زياته کړه او پوه شول چې له افغانانو سره مقابله کول څرنګه چې ګومان کېده آسانه کار نه و، له دې کبله يې پر افغاني خاوره د تېري او حملې او د افغانانو د آزادۍ سلبولو لپاره ( چې يوازې يې خپله او د خپلې خاورې طبيعي آزادي غوښتله ) د يو لوی لښکر او وسلوال پوځ د برابرولو په فکر کښې شو.

له يوې خوا صفوي پاچا په سترو پوځي تدارکاتو او ترتيباتو بوخت شو، له بلې خوا ميرويس د دفاع لپاره وسايل سنجول او برابرول، چې يو له دې د هند له دربار سره راشه درشه او له هغه څخه د مرستې غوښتل وو.

### *د هند له دربار سره اړيکې ټينګول:*

بايد وويل شي چې ميرويس د خپلواکۍ تر اعلان وروسته لـه ډېرو سياسي ستونزو او ستومانيو سره مخامخ شو، ځکه چې له يوې خوا د هند مغلي دربار چې له پخوا يې له افغانانو سره جوړه نه وه او مناسب وضعيت يې ورسره نه درلود او تل يې د کندهار د نيولو لپاره هڅه کړې وه، د افغانانو خپلواکۍ ته يې په ښه نظر نه کتل او هغه يې د ځان لپاره يو ستر خطر باله، څرنګه چې حسام الدوله او خافي خان دغه حالات بيان کړي او ليکي:

کله چې د افغانانو د خپلواکۍ او استقلال د اعلان خبر د هند مغلي دربار ته ورسېد، په ښکاره يې د مجبوريت له مخې د هغوی خپلواکۍ ته يوحده پورې وپېژندله او خپله خوښي يې څرګنده کړه، خو په

(۱) دافغانستان تاريخ، ميلبسن، ۲۱۴ مخ.
(۲) درهٔ نادره، ۳۹ مخ.

باطن کښي يې د اصفهان له دربار سره مخابرې او مفاهمې وکړې، چې د پښتو په دفع کولو کښي (چې د خافيخان د وينا له مخي د دواړو خواوو د هېواد اوملت لپاره له ګټوري او سمي رأيې نه مخالف وو) ژر کوښښ وکړي.[1]

او له بلې خوا ددې وېره وه، چې صفوي دولت هم له هند سره متحد او يو لاس شي او افغاني خاوره خپل ترمنځ ووېشي، له دې کبله ميرويس سره له دې چې د افغانانو په نسبت د هند د مغلي دربار له نيت څخه بې خبره نه و، خو بيا هم د دې لپاره چې وضعيت په ښه ډول ځان ته معلوم کړي او هم يې د ګاونډيتوب د غوښتني له مخې وغوښتل چې د هند مغلي دربار ته د افغانانو دوستانه نيتونه څرګند کړي او هغه وېره چې د افغانانو له خپلواکۍ څخه د مغلو دربار ته پيدا شوې وه، لېري کړي او ان يو ګام وړاندي واخلي او د هند له درباره د اړتيا پر وخت مرسته وغواړي.

د همدغې مفکورې له مخې يې د افغانانو د دوستانه غوښتنو او د خپلي خاوري د استقلال په نسبت د آزادۍ غوښتونکو د تصميم د خبرتيا په باب يو ليک د هند د دربار شهزاده ته وليکه.[2]

**چې مفهوم يې داسي و:**

"موږ افغانان د ټولو ګاونډيانو په نسبت د هندوستان د پاچا په ګاونډيتوب وياړو، ځکه چې په دين او مذهب کښي سره شريک يو او په همدغه نسبت ډېر باور لرو، چې د اړتيا پر وخت به له موږ سره مرسته وکړي، موږ د پارس د پاچا پرضد تصميم نيولی، ځکه چې هغه زموږ پر خاوره د يرغل او زموږ د مذهب پرضد د جګړې لپاره عسکر رالېږي، له دې کبله موږ له تر ټولو لوی واکمن شهزاده څخه هيله کوو چې زموږ د حال حقيقت د هند د ډېر ستر پاچا حضور ته وړاندي او بيان کړي.

څرنګه چې اوس په هغه هېواد (هند) کښي بشپړ امنيت دی، نو که د اړتيا پر وخت يو ټولګی عسکر زموږ د

(١) منتخب اللباب، دويم ټوک، ٦٤٣ مخ.

(٢) دغه ليك د (١٧٠٩ م کال) په پای کښي هغه مهال چې بهادرشاه د هندوستان پر تخت ناست و، د هند شهزاده ته ليکل شوی دی.

مرستي او ملاتړ لپاره راولېږل شي، د پاک خدایﷻ په فضل او مرحمت به د خپل مذهب پر دښمنانو او تېري کوونکو باندې غالب او بريالي شو.

افغانان د مېړاني خاوندان دي او ښايي ځيني غوښتني مـوږ دېتـه چمتو کړي، چي د دوو پوځونو ( افغان او هند ) د يو ځای کېدو پروخـت د پارس ځيني توابع وهځوو."(١)

کله چي دغه ليک د هند پاچا ته ورسېد، د هغه خطر وېره چـي د افغانانو له خپلواکۍ څخه ورته پيـدا شـوې وه، لـيرې شـوه، لـه دغـو خـط وړونکو سره يـې مهرباني وکړه او په ډاډ ښونکي ځواب سره يـې رخصت کړل او له ميرويس سره يـې د آشنايي او دوستۍ لار پيدا کړه.(٢)

ميرويس هم د هند د پاچا د اطميناني ليک تر اخيستلو وروسته لـه هغې خوا ببخي ډاډه شو او ښايي چي د هند دربار تـه بـه پـه ليـک لېږلـو کښي مهم مقصد هم همدغه دوه ټکي وو، چي لومړی د هغـه پـه نسـبت د هند دربار وېـره ليري کړي، چي د افغانانو له اسـتقلال څخـه يـې ګومـان کړی و، دويم په هغه نازک وخت کښي د کندهار او افغانانو په هکله د هند د دربار نظريه ځان ته معلومه کړي.

کله چي ميرويس د هند له خوا ډاډه شو، نو پخپلـو هېوادنيـو او نظامي چارو بوخت شو او هـم يـې زيـاتره هغـه پارسـي مفسـدين او فتنـه غوښتونکي چي لا تر دې وخته يـې په کندهار کښي فسادونه پيدا کـول لـه منځه ليري کړل.

***له يودېرش زره تنو سره د خسروخان تېری:***

دمخـه مـو وويـل چـي پـه څلورمـه حملـه کـي د صفـوي لښـکر قوماندان محمدخان له درېيو زامنو سره ونيول شو او لښکر يـې ماتي وخوړه، لـه دې کبلـه پـه ( ١٢ - ١٧١١ ميلادي) کـال صفـوي دولـت تصميـم ونيـو چـي يـو سـتر لښـکر د هـېواد لـه دېرو ځواکمنـو او جنګيـاليو کسـانو څخـه برابـر کـړي او د افغانـانو پـر خـاوره بـاندي يـې د

(١) جنګ افغان و پارس.
(٢) سيرالمتاخرين، دويم ټوک، ٤٧٩ مخ.

تېري لپاره راولېږي، په تېره بیا چي د روسیې د سفیر اسراییل اري لـه خـوا ډاډه شو. یعنې وروسته تر دې چي په محرمانه ډول رخصت او په استرخان ښار کښي مړ شو.[۱]

د روس د سفیر تر مړینې وروستـه پـر افغـاني خـاوره د تـېري او د کندهار د نیولو موضوع د صفوي دربار تر بحث لاندي ونیول شـوه، کـه څه هم د دربار د اراکینو نظریې یو له بله مخالفې وې، خو په پای کښي یـې په اکثریت سره پرېکړه وکړه، چي د وژل شوي ګرګین وراره خسروخان چي د ګرجستان حـاکم او یـو چـالاک او جـګړه مـار سـړی و، د هغـو عسکرو پـه قومندانۍ مقرر کړي، چي پر افغانانو د تېري لپاره برابـر شـوي وو او هـم د خپل تره د انتقام په حس د افغانانو په تباهۍ کښي په اوچته پیمانه هـڅه او هاند وکړي، سربېره پردې هغه ته واک او اختیار ورکړل شو چـي د ګرجـي طایفې له ځوانانو څخه چي په پارس کښي یـې په جـګړه ماری کې مهارت درلود، په هغه شمېر چي خوښه یـې وي وټاکي.

خو مخالفي ډلې مخالفت وکړ او ویې ویل:" که په پوځیانو کښي له ګرجیانو څخه زیات ځوانان وټاکل شي او بیا په جنـګ کښي بریـالي شـي، نو بیا دا وېره شته چي د صفوي دولت له متابعت څخه سر وغړوي". لـه دې کبله یـې وړاندیز وکړ چي شپږ زره تنه پارسـي پوځیـان دي د عبـاس قلـي بیګ په مشرۍ له ګرجي عسکرو سره لاړ شي او بله دا چـي خسـروخان دوه سوه زره تومانه چي د لاري د لګښت لپاره غوښتـي دي، نـو بـاید پنځوس زره تومانه ورکړل شي.[۲]

دا د جنګ افغان و پارس د لیکوال قول و، خو میلیسن په عمومي ډول لیکي چي د دغو عسکرو شمېر یودېرش زره او دوه سوه و، چي له دې جملـې څخـه یـو زر او دوه سـوه تنـه ګرجیـان او نـور لـه هـرې فرقې څخه وو.[۳]

په دې توګه خسروخان دیودېرشو زرو تنو په مشـرۍ او قومندانـۍ

(۱) جنګ افغان و پارس.
(۲) پورتنی اثر.
(۳) د افغنستان تاریخ، میلیسن، ۲۱۵ مخ.

په (۱۱۲۳ هـ ۱۷۱۳ م) کال د کندهار خوا ته روان شو او له کوم خنډ پرته تر فراه پورې ورسېد او له هغه ځایه یې د معلوماتو حاصلولو او ددې لپاره چې د میرویس پر دفاعي ترتیباتو پوه شي، نو خپل جاسوسان (څارګر) یې دمخه ولېږل، خو هغوی ژر بېرته ستانه شول او ویې ویل چې میرویس د فراه او ګرشک ترمنځ درې خوشي کړې او تخلیه کړې یې دي.

**د میرویس دفاعي تیارې:**

کله چې میرویس د صفوي دولت د یرغلګرو عسکرو له رالېږلو څخه خبر شو، نو په وړ دفاعي ترتیباتو او تدارکاتو یې لاس پورې کړ. لومړې یې امر وکړ چې ټول کښتونه وربېځ او کلاګانو ته یې ننباسئ او ډېره هڅه یې وکړه، چې مځکې او پټې له غلو او وښو څخه خالي او وچ کړې او په دې ډول یې د انسان او حیوان خوراکي مواد او د ژوندانه نور لوازم او ضروریات یې په پوره اندازه برابر کړل او د جنګ افغان و پارس د لیکوال په قول، د دوو کلونو لپاره یې بشپړ ترتیبات ونیول او د ښار زیاتره اوسېدونکي یې لکه ښځې، سپین ږیري او کوچنیان له ښاره دباندې ټینګو کلاګانو، غرنیو ځایونو او جګو دېوالونو (حصارونو) ته ولېږدول او د سپرو نظام یوه زیاته برخه یې د داوُدخان هوتک[۱] په مشرۍ او سپه سالارۍ د فراه درېیو خواته ولېږله، چې وروسته خسروخان له فراه څخه په روانېدو سره او د هغه په دفاع لاس پورې کړي.[۲] پخپله میرویس له پلیو ځواکونو سره چې د خسروخان د قواوو په نسبت ډېر لږ وو، د هلمند رود پر غاړه د بُست په خرابو کښې منتظر و.

میلیسن لیکي: که څه هم د افغانانو شمېر ډېر لږ و او د خسروخان د لښکر لسمه برخه هم نه کېدله، خو د لومړنیو فتوحاتو په نشه دومره مست وو چې پخپل لږ شمېر له یو دېرشو زرو او دوه سوه تنو سره د مقابلې میدان ته حاضر شول.[۳]

---

(۱) داوُدخان هوتك د پټې خزانې د لیکوال پلار دی، چې د هوتکي دورې د نومیالیو په برخه کښې معرفي کېږي.
(۲) پټه خزانه، ۱۹۷مخ.
(۳) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۱۵ مخ.

## د کندهار ښار محاصره :

له خسروخان سره د داوُدخان د جګړې تفصیل او وروسته بیا د هلمند تر څنګ د میرویس خان د دفاع تفصیل لاسته رانه غی، یوازي دومره یې لیکلي، چي کله د خسروخان لښکر په ډېر شدت چپاو راوړ او افغاني لښکر د پارسي لښکر لسمه برخه هم نه وه، نو خسروخان وکړای شول چي د هلمند له سینده راپوربوزي او د کندهار ښار ته نژدې ورسېږي.

میرویس چي له یوه ټولګي آزادۍ غوښتونکو سره له ښاره دباندي و او دننه د ښار آزادۍ غوښتونکو ته یې د محاصرې امر ولېږه. هغه وو چي د ښار دروازي وتړل شوې د ښار اوسېدونکو دننه د ښار له خوا او میرویس له بهر څخه په دفاع او مقابله پیل وکړ او د میلیسن په قول میرویس د نپولین (١٨١٤ م) په شان یقین درلود، که چیري په دارالخلافه کښي مقابله پیل کړي، داسي کار به وکړي چي دښمن د ماتي خوړلو د نغارې ډنګولو ته اړ شي.[1]

پارسیانو د محاصرې ماتولو لپاره ډول- ډول اقدامات کول، خو کوم شي چي خسروخان او د هغه لښکر یې وارخطا کړي وو، دا و چي دوی په دغه امید چي د مني موسم دی، غله دانه او واښه ډېر پیدا کېږي نو پوره خوراکه مواد یې له ځان سره نه وو راوړي، یوازي یې نقدي پیسې درلودلې او له دې کبله چي د کندهار د شا و خوا ځایونو ټول کښتونه اوکروندې خالي او سپېرې ځمکې وې، نو له سختې اندېښنې او پرېشانۍ سره مخامخ شول. خو هغه یې کوله چي خپله اندېښنه پټه کړي.

میرویس چي د هغو د خوارکي موادو له لړوالي څخه ښه خبر و، د ښار ساتونکو ته یې د زغم او دفاع لارښوونې کولې.

د میلیسن په قول که څه هم د ښار له خلکو څخه څو تنو د میرویس او نورو آزادۍ غوښتونکو له مشورې پرته غوښتل له میرویس سره داسې معامله وکړي، لکه چي پاریس له نپولین سره کړې وه، یانې غوښتل یې چي له خسروخان سره خبري وکړي او په څو شرطونو له هغه سره د متارکې

(١) د افغانستان تاریخ، ٢١٥ مخ.

معاهده وکړي، خو د دوی له غوښتنې څخه خسروخان داسې وګڼله چې ښار د دوی په لاس کې دی او په تنګ شوي دي او له دې کبله یې ( بې له شرطه تسلیمېدو) پرته یې د هغوی بل غږ ته غوږ کېښنود او ویې نه منله.

کله چې د ښار خلکو له یوې خوا د بې شرطه تسلیم غوښتنه لیدله او له بلې خوا یې د میرویس د استقامت او زغم پرله پسې لارښوونې اورېدلې، نو مړینې ته یې تر بې شرطه تسلیمېدو ترجیح ورکړه او په مېړانه یې مقابلې او دفاعي حالت ته زور او شدت ورکړ او دومره یې د مېړانې پښې وخرلې، چې په څو حملو کښې یې یرغلګر ځواکونه شاتګ ته اړ کړل او له بلې خوا میرویس خان د بلوڅو، ترینانو او نورو افغاني قبایلو له آزادۍ غوښتونکو سره د کندهار ښار له جنوبي خوا د خسروخان پر اردو باندې برید وکړ او د ښار محاصره شویو اوسېدونکو ته یې پیغام ولېږه، چې:

"اوس که موږ دښمن زړورکړو او ځانته وېره پیدا کړو او دښمن غالب شي، نو موږ به یو هم ژوندی پرې نه ږدي، نو ښه دا ده چې په مېړانه کوښښ وکړو، چې یا په ښه نوم سره ووژل شو او یا پر دښمن باندې بریالي شو."[1]

د ښار افغانانو چې د میرویس پیغام واورېد، زړه یې ورباندې تکیه او مقاومت یې شدید شو او د سر په قربانۍ یې د دښمن په مقابله پیل وکړ.

### *د خسروخان نفاق اچونه:*

هغه تکی چې باید په ډېره خواشینۍ سره وویل شي او له بده مرغه پردي خلک ورباندې له دې لارې بریالي شي، چې افغاني قوه کمزورې او ماته کړي، د افغانانو ترمنځ د نفاق اچونې فتنه ده، چې د یرغلګرو او پردیو خلکو له خوا ترسره کېږي.

د افغان ملت په تاریخ کښې له داسې ډېرو پېښو سره مخامخېږو، چې یرغلګر او دښمنان نه دې بریالي شوي

(۱) داستان تر کتازان هند، څلورم ټوک ۲۴۶ مخ.

چي د وسلې او مټ په زور افغانان مغلوب کړي، نو په بېلابېلو نومونو يې د افغانانو ترمنځ د بې اتفاقۍ، فشار او فتنې په پيدا کولو لاس پورې کړی دی.

څرنګه چي افغانان عموماً پاک او ساده زړونه لري، د فتنه غوښتونکو په ويناوو تېرويستنو او حيلو باندي باور کوي، ربنتيا يې بولي او د بهرنيو مفسدينو په لمسون او تحريک پخپلو منځو کښي سره لاس و ګرېوان کېږي او په دې توګه د افغانانو دښمنان پخپله د افغانانو په واسطه پر افغانانو باندي غالبېږي. خسروخان هم غوښتل چي له دې افغان وژونکې وسلې څخه کار واخلي او د همدغه مقصد لپاره هغه وخت چي لا فراه ته نه و رسېدلی، د حيات سلطان له زوی عبدالله خان [1] سره يې چي د هرات د ابداليانو په غوښتنه له خپل زوی اسدالله خان سره له ملتان څخه د هرات خوا ته را روان شوی و، وکتل. [2]

څرنګه چي په دې پوهېده چي عبدالله خان د هرات په ابداليانو کښي پوره رسوخ او نفوذ لري، نو دی يې د هرات د ابداليانو رئيس وباله په داسي حال کښي چي د ابداليانو او غلجيانو تېر واقعات يې بيانول، دی يې د کندهار نيولو ته تحريک او تشويق کړ او په دې توګه يې وغوښتل چي د غلجيانو او ابداليانو ترمنځ غلي شوي اختلافونه بېرته تازه او جدي کړي او د عبدالله خان په مشرۍ يې د هرات ځينې ابداليان د کندهار د نيولو لپاره له خان سره راروان کړل.

کله چي کندهار ښار محاصره شو، عبدالله خان چي يو هوښيار او تجربه کاره سړی و، د يرغلګرو او تېري کوونکو په فساد او فتنو پوه شو او ويې ليدل چي خسروخان د ابداليانو له فتحې سره کومه لېوالتيا او سروکار نه لري، بلکې ابداليان يې د خپل دولت د استعماري اغراضو لپاره د لاس آلې ګرځولي او هم يې خپل ځان د افغاني دود

(١) حيات سلطان چي په فيروزخان مشهوره دی، بيان يې مخکي تېر شوی دی.
(٢) خورشيد جهان، ١٣٢ مخ. جهانکشای نادري، ۴ مخ.

پرخلاف[1] په داسي حال کښي چي بهرني دښمنان په خاروه کښي شته، د خپل قوم او ملت په وړاندي یې یرغلګر ولید له خپل اقدام څخه یې پښېماني ښکاره کړه او د خواندمیر د لیکني له مخي: عبدالله خان او نورو ملګرو یې د کندهار تر محاصرې وروسته پلمه وکړه اوخپل ځای ته لاړل[2] او له افغاني دود سره سم یې د ابدالیو او غلجیو پر شخصي دښمنیو باندي تیره کښېښوده.

## د خسروخان او د ده د لښکر هلاکېدل:

وروسته تر دې چي عبدالله خان ابدالي او ملګري یې له خسروخان څخه بېل شول او خپلو کورونو ته لاړل، د خسروخان او د ده د لښکر په روحیاتو کښي کمزوري او تزلزل پیدا شو، له یوې خوا دننه د ښار د آزادي غوښتونکو سخت مقاومت او مقابلې او له بلي خوا له بهر څخه د میرویس یرغلونو د هغوی کار ستونزمن کړ او له بلې خوا ژمی ورسېد او د زېرمي اوخوراکي موادو د نه لرلو له کبله یې نهیلي زیاتېدله. ځکه چي میرویس پر هغو توندو حملو سربېره چي د خسروخان پر اردو یې کولې، د زېرمو او خوراکي موادو د رسېدو ټولي لاري یې تر سختې څارني لاندي نیولې او بندولې.

خسروخان چي خپله نیمه اردو یې په هغه اخ ودب کښي له لاسه ورکړې وه، له خپلو همکارانو سره تر مشورې وروسته له محاصرې څخه لاس واخیست او اصفهان ته یې د تېښتې لار لټوله، خو د تېښتې د لاري په ټاکلو کښي د لښکر ترمنځ بې اتفاقي پیدا شوه، پارسیان له یوې لاري په

(۱) افغانان ځانګړي دودونه او روایات لري، ببله دې چي پر کاغذ لیکل شوي او تصویب شوي وي د ټولو افغانانو له خوا د منلو وړ ګرځېدلي، د هغو په عملي کولو ځانونه مکلف بولي، چي له هغو څخه یوه عنعنه، افغاني او ملي قانون دا دی چي په خپلو منځو کښي هر څومره سخت عداوت او دښمني ولري کله چي بهرني دښمن منځته راشي، نو پر هغو ټولو شخصي عداوتونو باندي تیره ږدي، یعنې هغه شخصي او خپلمنځي دښمني هېروي او د بهرني دښمن په وړاندي ټول سره متحد او متفق کېږي او د بهرني دښمن پرضد په مدافعه پیل کوي او ورسره جنګېږي.

(۲) د خواندمیر روضة الصفا، اتم ټوک.

تېښته کې شول او ګرجیان هم پر دوو برخوو ویشل شول.

عباس قلیخان چې د اصفهان دربار د څانګړي نماینده په توګه لـه خسروخان سره ملګری و، کله چې یې د خسروخان د لښکر ماتې او ټوټه ټوټه کېدل ولیدل، نو میرویس ته تسلیم شو او د یرغلګرو عسکرو د ځرنګوالي ټول جزئیات یې میرویس ته بیان کړل.[1]

میرویس د یرغلګرو له ماتې او تېښتې څخه خبر شو، سملاسي یې پر اته سوه اوښانو جبه خانه او نور حربي لوازم بار کړل او لـه شپاړ سو زرو آزادۍ غوښتونکو سره یې د خسروخان پر پوځ باندې برید وکړ او خسروخان یې په خپل تره (ګرګین) پسې ولېږه او د جهانکشای نادري د مؤلف په اصطلاح خپل سر یې د کندهار کلا په پښو کښې کښېښود.[2]

دغه راز له یودېرش زرو او دوه سوه تنو څخه یوازې اووه سوه تنو او په یوه بله وینا له یرغلګرو څخه پنځه سوه تنو وکړای شول، چې د چټکې تېښتې له کبله ځانونه سلامت خلاص کړي.[3] او پاتې نور ټول یې د خپل ناروا تېرې په سزا ورسېدل او ووژل شول او ټولې وسلې او تجهیزات یې د افغاني آزادۍ غوښتونکو لاسته ورغلل.

میرویس د هغې فتحې او کامیابۍ له کبله پاک خدای ﷻ ته شکر وکړ او بېرته کندهار ته راستون شو او غنیمتونه یې پر آزادۍ غوښتونکو ووېشل.

شېرمحمد افغان د خسروخان د وژل کېدو نېټه د ۱۱۲۳ هجري کال د روژې میاشتې ۲۸ مه ورځ لیکلې ده.[4] خو میلیسن هغه نېټه ۱۷۱۳ میلادي کال بولي.[5]

---

(۱) جنګ افغان و پارس.
(۲) جهانکشای نادري، ۴ مخ.
(۳) سرجان مالکم: اووه سوه تنه او سید جمال الدین افغان پنځه سوه تنه لیکي. (تاریخ ایران، ۲۰۴ مخ. تتمة البیان ۳۵ مخ) دغه ډول دي وکتل شي: (تاریخ ادبیات ایران، ادواردبرون، د یاسمي ژباړه. ۱۰۱ مخ. زندګاني نادرشاه، ۱۱ مخ).
(۴) خورشید جهان، ۱۳۲ مخ.
(۵) د افغانستان تاریخ ـ میلیسن، ۲۱۶ مخ.

### د رستمخان په مشرۍ بل لښکر:

صفوي حکومت دوه کاله وروسته د محمدرستم خان په قومندانۍ یو بل لښکر د کندهار خوا ته راولېږه؛ خو څرنګه چې د میرویس مټ د ملت په اتفاق او همکارۍ بنه ځواکمن او ټینګ شوی و، له دې کبله د یرغلګرو دغه لښکر هم کوم کار ونه کړای شو او ماتي یې وخوړه او رستمخان ددې لپاره چې د خپلو اسلافو له برخلیک سره مخامخ نه شي، نو ژر تر ژره یې له افغاني خاوري څخه پښې وایستلې او اصفهان ته وتښتېد.

ګویا پر افغاني خاوره دا د صفوي دولت د یرغل وروستۍ هڅه وه، چې په (۱۱۲٦ هـ ـ ۱۷۱۴م) کال کښې له ماتي سره مخامخه شوه او په ناکامۍ سره پایته ورسېد.[۱] خو سلطان محمدمهدي او خواندمیر تر خسروخان وروسته د رستمخان نوم نه یادوي او دده پرځای محمدزمان خان شاملو یادوي، چې ګویا تر خسروخان وروسته له ډېرو عسکرو سره د کندهار په نیولو مامور شو. دی لیکي چې دی همغه وخت لا کندهار ته نه و رسېدلی، چې مړ شو او لښکر یې بېرته خپل هېواد ته وتښتېد.[۲] په هر صورت، میرویس تر دغو پېښو وروسته د کندهار مستقل رئیس شو او د میلیسن په وینا هغه لومړنی کس دی، چې د افغانستان ټول قبایل او قومونه یې (د هرات له ابدالیانو پرته) داسي متحد او متفق کړل، چې ساری یې ډېر لږ لیدل شوی دی.[۳] او د کندهار زوړ ښار یې د افغانانو د ریاست مرکز وګرځاوه او د هېواد د چارو په تنظیم او ترتیب بوخت شو.

### د میرویس مړینه:

د افغان ملي قاید او لوی مشر میرویس خان تر خپلواکۍ وروسته د هېواد لویدیزي سیمې تر فراه او سیستان پوري ترلاسه کړې او د افغان ملت آزادي یې یوځل بیا لاسته راوړه او افغانانو ته یې د ملي یووالي لار

(۱) د میلیسن تاریخ، ۲۱۷ مخ. تاریخ ادبیات ایران، برون، څلورم ټوك، ۱۰۱ مخ.
(۲) تاریخ سلطاني، ۷۲مخ. جهانکشای نادري، ۶ مخ. روضة الصفای ناصري، ۸ ټوك.
(۳) د افغانستان تاریخ، میلیسن ۲۱۷ مخ.

وښودله، د اجل قاصد یې ورسېد او پرې نه ښود چې دغه ستر زعیم د ملي پاڅون هغه تولي مفکورې چې لـه ځان سره یـې درلودلـې، د عمـل ډګر ته راوباسي.

د ۱۱۲۷ هجري کال د لوی اختر میاشتې ((ذي الحجې)) پـه ۲۸ مه ورځ ومړ او له دې فاني دنیا څخه یې سفروکړ.[1] (اناالله واناالیه راجعون)

که میرویس پراخ تشکیلات ونه کړای شول او یـا د ده تولـې ملـي هیلي عملي نه شوې، البته دا د پوره وخت نشتوالی و. ځکه دمخه مو وویل چې په ۱۱۲٦ هجري کال له یرغلګرو سره له جـګړو څخـه وزګار شـو او پـه ۱۱۲۷ هجري کال کښې مړ شو. نو یو کـال د ده د ملـي مفکـورو د عملـي کولو لپاره ډېر لږ وخت و.

د جنـګ افغان و پارس نومي کتاب لیکوال د میرویس مړینه داسي بیانوي: "... دغه مشهوره او هوښیار قهرمان چې اووه کاله[2] یـې په کندهـار کښي حکومت وکړ او د پارس د ډېر مقتدر سلطنت پرضد یې پاڅون وکـړ او راپورته شو، د نهیلی اندېښنو هېڅکله د ده په روحیه کښي یو کوچنی تزلزل هم پیدا نه کړ، تر دې چې جسماني قواوې یـې د عمر د ډېر والي له کبلـه کرار کرار لږې شوې او د ده پر کمزوري جسم باندي یوې وژونکې ناروغـۍ حمله وکړه، د ده د ناروغۍ پر وخت تول افغانان غمجن او خپـه وو او تـل به یـې پوښتني ته راتلل او په تولنیزو او حیاتي چارو کښي بـه یـې د هغه نصیحتونه اورېدل او مشورې به یـې ورڅخه اخیستلې او هغه به یـې عملـي کولې[3] ..."

## د میرویس وروستنۍ خبرې:

څرنـګه چې د جنـګ افغان و پارس د کتـاب لیکـوال وایـي کلـه چې میرویس د خپلي ناروغۍ پر سختۍ پوه شو. نو د قوم مشران او رئیسان یـې خپـل حضور تـه راوغوښتـل او هغـوی تـه یـــې د دغـو څو لنـډو جملو توصیه وکړه:

(۱) پته خزانه، ۱۰۹ مخ.
(۲) په اصل کښي اته کاله دي.
(۳) جنګ افغان و پارس، ۵۸ مخ.

" خپل ټول کارونه خدای تعالیﷻ ته وسپارئ او پر هغه باندي توکل وکړئ، جنګ په مېړانه مخ په وړاندې بوځئ، په هر کار کښي شرافتمندانه چلند کوئ، په هر وخت او هر ځای کښي سره یو او متفق واوسئ، هېڅکله دپارسیانو اطاعت او متابعت پر ځان ونه منئ.

په هره قوه او کېدونکې هڅه هغه دښمنان چې پر تاسو برید کوي، پر شا ووهئ، ځکه چې ستاسو دښمنان د درباري اختلافونو او هغوی د خپلو خلګو د خیانت، فساد او فتنو له کبله په چټکۍ سره مخ په فنا او زوال روان دي ...

د هغوی د شمېر له زیاتوالي ونه وېرېږئ، ځکه تاسو متحد یاست او پر پاک خدایﷻ باندي مو توکل کړی دی، یقین لرم چې پر هغوی غالبېږئ او هغوی مغلوبوئ ..."

په دې وخت کښي یې د نورو خبرو طاقت پاتې نه شو او ساه یې په ډېر تکلیف سره کښته پورته کېدله او په ډېرو ستونزو سره یې سترګې وغړولې او تر شهادت کلمې مخکې یې وروستنۍ خبره دا وه:

*( اصفهان ونیسئ !)*[1]

تر هغه وروسته یې یوه ژوره اوږده ساه وایستله او د پاک روح مرغه یې علیین او ابدي مقام ته والوت او د افغان ملت د آزادۍ غوښتني په نړۍ کښي یې لوړ نوم او مقام ژوندی پرېښود.

قبر یې د کندهار د ښار په دوولس کیلومترۍ کې دی او په (کوکران) کلي کښي د عامو او خاصو زیارتځی دی او تر مرګ وروسته مور ته وایي :

برسر مرقد ما چون گذری همت خواه
که زیارتگه مردان جهان خواهد بود.

(۱) جنګ افغان و پارس، ۵۸ مخ.



د کندهار په کوکران کي د میرویس نیکه مزار

# دریمه برخه

## د عبدالعزیز دوره[۱]

له میرویس څخه دوه زامن او یوه لور پاتي شوه، چې مشر زوی یې د میرویس د مړیني په وخت کښي اتلس کلن و او عمر یې د ریاست د مقام د نیولو وړ نه و، نو د قوم مشرانو د میرویس کشر ورور عبدالعزیز په ریاست وټاکه.

خو له بده مرغه عبدالعزیز د میرویس افغاني لوړ صفتونه نه لرل او د استراحت طلبی په وجه یې له مبارزې څخه ډډه کوله او د امن خوښونې حس په کښي دومره پیاوړی شوی و چې د اسارت او مغلوبیت د چاپېریال ظاهري امن یې د آزادۍ په لاره کښي تر هڅو او مبارزو غوره ګاڼه، له همدې کبله له صفوي مات شوي او کمزوري کېدونکي حکومت څخه چې میرویس د خپل اقتدار پر وخت ورسره ډغري وهلي وې، عبدالعزیز د هغه د ماتي په حال کښي بیا هم ورڅخه په وېره کښي شو

وروسته تر دې چې یې د ریاست د چارو واګي په لاس کښي ونیولې، نو د قوم مشران یې راوغوښتل او له هغوی سره یې د پارس له حکومت سره د سولي په باب خبري وکړې او ویې ویل:

"له دغو ټولو ستونزو او ډېرو جګړو څخه ښکاري، چې تاسو هم زما په شان د پارس له حکومت سره د سولي غوښتونکي یاست او غواړئ آرام واوسئ، اوس چې زما د مشر ورور ستره فتحه په نصیب شوه او له دنیا څخه یي سفر وکړ، نو که چیري مونږ د سولي غوښتنه وکړو، د پارس پاچا

(۱) میلیسن، پسرجان مالکم او سید جمال الدین افغان د میرویس د ورور نوم (میرعبدالله) لیکي، خو سلطان محمد، محمد مهدي او خواندمیر هغه د (عبدالعزیز) په نامه یادوي. خو د پټي خزانې لیکوال چې پېښې یې په سترګو کتلي دغه وروستي قول تایید کړی دی، نو ما هم دغه وروستي قول ته اعتبار ورکړی او عبدالعزیز مي لیکلی دی.

به په ډېره خوشحالۍ سره هغه ومني.[۱]

که څه هم دغه وړانديز په ظاهره د افغانّ او پارس ترمنځ د سولې د تړون لپاره کوم خنډ نه پيدا کاوه او افغانانو هم د خپلې خاورې له آزادۍ پرته له صفوي حکومت سره بله دښمني نه درلوده، خو هغه شرطونه چې عبدالعزيز په پام کې درلودل چې حکومت ته يې ولېږي، د يو ډول کورنۍ آزادۍ او په اصطلاح د اتونومۍ بڼه يې جوړوله او يا په بل عبارت د پارس حکومت تر نفوذ لاندې يې د تنګ معنا درلوده او له دې کبله هغه ټولې هڅې او قربانۍ چې د افغاني خاورې د پوره آزادۍ د ترلاسه کولو او ساتلو په لاره کښې شوې وې، بې ګټې کېدلې او بښځايه تلې او د افغانانو بشپړه آزادي يې په پلو نه درلوده، له دې کبله د عبدالعزيز وړانديز جرګه په غوسه کړه او د قوم د مشرانو احساسات يې راوپارول او هغه ته يې وويل: (( که چيري د ورور پر پَل او لاره تللای نه شې، نو په مصالحت کښې تلوار مه کوه.[۲] عبدالعزيز سره له دې چې وړانديز يې د قومي جرګې له خوا ونه منل شو، خو بيا يې هم د خپلو څو لږو استراحت غوښتونکو پلويانو په مشوره د سولې شرطونه په پټه د اصفهان دربار ته ولېږل او داسې يې وښوده، چې که چيري صفوي حکومت د ده شرطونه ومني، نو دی به کندهار بېرته په صفوي سلطنت پورې وتړي؛ هغه شرطونه دا وو:

(۱) ـ افغانان بايد د تل لپاره د ماليو له ورکولو معاف وي.

(۲) ـ د پارس عسکر دې کندهار ته نه راځي.

(۳) ـ د کندهار امارت دې د تل لپاره دعبدالعزيز په کورنۍ کښې موروثي وي[۳]

د اصفهان له دربار سره د عبدالعزيز دغه پټې خبرې تر څلورو مياشتو پورې رواني وې.[۴] په پای کښې صفوي دولت د دې لپاره چې بيا د افغانانو ترمنځ د نظر اختلاف او نفاق پيدا کړي، هغه پټ شرطونه يې چې عبدالعزيز د قوم له رضايت پرته اصفهان ته لېږلي وو. افغاني

---

(۱) جنګ افغان و پارس، ۵۸ مخ.
(۲) د ايران تاريخ، سرجان مالکم، ۲۰۰ مخ.
(۳) ميليسن ۱۲۹ مخ. سرجان مالکم، ۲۰۰ مخ. سيد جمال الدين، ۸۳ مخ. قاضي عطاالله، اول ټوک، ۶۳ مخ.
(۴) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۶۳ مخ.

آزادۍ غوښتونکو ته ښکاره کړل.

کله چې آزادۍ غوښتونکي په دې شرطونو خبر شول، نو په رښتیا چې ډېر زيات اغېزمن او په غوسه شول او د عبدالعزیز او د ده د لړو همکارانو په مخالفت پورته شول، چې هر څنګه چې کېږي، دی د رياست د مقام پرېښودلو ته اړ کړي.

د افغاني آزادۍ غوښتونکو په ډله کښې د میرویس مشر زوی (محمود) هم و، چې د خپل تره عبدالعزيز اقدام یې له ملي مفاد څخه مخالف او د خپل پلار له لوړو مفکورو او اقداماتو نقيض او منافي باله. نو د عبدالعزیز تر یو کال حکومت وروسته په ۱۱۲۹ هـ کال یوه شپه څلوېښت تنه آزادۍ غوښتونکي د قوم د مشرانو په مشوره په نارنج مانۍ[1] کښې د عبدالعزیز بستر ته ورغلل او په هغه خنجر چې له ځان سره یې وړی و، د هغه ژوند پایته ورساوه.[2] د دې پېښې په نقل کښې ټول تاريخ کښونکي متفق دي. يوازې د پټې خزانې ليکوال چې د هوتکي دورې د واقعه ليکونکو او معاصرينو له ډلې شمېرل کېږي، د عبدالعزيز د وژل کېدو په هکله څه نه وايي، خو يوازې دومره ليکي چې:

"... مير عبدالعزيز چې د حاجي ميرخان ورور و، پس له مرګه د ورور په کندهار کې مشر سو، خو د ولس رعايت يې کم کا، خو چې په (۱۱۲۹) سنه هجري د شپې د نارنج له قصر له بامه خطا سو او راولوېد، مړ سو."[3]

که چيري د پټې خزانې د ليکوال قول ته چې پېښې يې د سر په سترګو کتلي دي، خاص اعتبار ورکړل شي، نو بايد د محمود لاس د خپل تره له وينو پاک وګڼل شي او که داسې نه وي نو ښايي چې د وخت د غوښتنې له مخې يې نه دي غوښتي چې د عبدالعزيز د وژل کېدو نسبت (محمود) ته وکړي، چې تر هغه وروسته سلطنت ته ورسېد.

(والله اعلم بالصواب!!)

---

(۱) نارنج مانۍ: د کندهار د زاړه ښار شاهي ارګ و، چې د ښار په منځ کښې پروت و او اوس يې هم نښې او خرابې پاتې دي.

(۲) سرجان مالکم، ۲۰۰ مخ.

(۳) پټه خزانه، دويم چاپ، ۱۱۰ مخ.

# خلـــورمـــه برخه

## د شاه محمود دوره

شاه محمود د میرویس مشر زوی په ( ۱۱۱۰هـ ) کال کښي وزېږېد او هغه کال چي درونډ پلار یې مړ شو، اتلس کلن و.[1] او له نولس کلنی یې، وروسته تر دې چي عبدالعزیز له منځه لاړ، د هغې شپې سبا ته د عادت له مخي نغارې چي د ښار په څلورو کونجونو او لوړو برجونو کښي کېښودل شوې وې، ووهل شوې.[2] د ښار خلک له دود سره سم د نغارو له وهلو په شول چي کومه مهمه پېښه شوې ده، نو ټول ارګ ته نژدې راټول شول او د مهم خبر اورېدلو په انتظار کښي ودرېدل.

څو دقیقې وروسته محمود له ارګ څخه راووت او وروسته تر دې چي د قرآن کریم څو آیتونه او حدیثونه یې ولوستل، د ښار خلکو ته یې چي عموماً آزادي غوښتونکي وو، خطاب وکړ او ویې ویل:" زما تره د خپل شخصي استراحت او هوسایي لپاره غوښتل چي افغانان بیا د پردیو د اسارت په زنځیر وتړي او زموږ هېواد برباد کړي ...".

په دې وخت کښي یې د خپل تره د وفادارۍ هغه پانه چي د اصفهان دربار ته لېږل شوې وه، د هغې له شرطونو سره چي د افغانانو د بیا اسیر کېدو سبب کېده، خلکو ته وښودله اوبیا یې اعلان وکړ:"نو له دې کبله

---

(۱) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۱۷ مخ. تاریخ ایران، سرجان مالکم، ۱۹۹ مخ. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، ۶۲ مخ .

(۲) هغه زمانه په افغانستان، پارس او ځینو نورو ختیزو هېوادونو کښي دود و، چي د ښار په هر کونج کښي به یې ځانګړي برجونه او یا مناري جوړولې او په هغو کښي یې نغارې کېښودلې، چي په لازمو او مهمو وختونو کښي به د خلکو د خبرتیا لپاره وهل کېدې .

ما هغه وواږه.[۱]

د کندهر خلکو چي ځيني يې لا پخوا له دې شرمناکې عهدنامې او د هغې له شرطونو څخه خبر وو، د (محمود) پر اقدام آفرينونه وويـل او دی يې هماغه ورځ په پاچهي او سلطنت وټاکه او تر هغه وروسته يعنې په (۱۱۲۹ ه) کال کښي شـاهي نغاره د ده په نـوم ووغـول شـوه او دی په (شاه محمود) ونومول شو.

هغه مهال شاه محمود که څه هم د عمر په لحاظ ډېر ځوان و، خو د سرجان مالکم په وينا:" له کوچنيوالي څخه د ده په تندي او څېره کښي د لويوالي نښي ليدل کېدلې"[۲] دی يو ځيرک، سخي، جنګيـالی او زړور ځوان و، چي د آزادۍ غوښتني په ټولو جګړو کـښي لـه خپـل ښاغلـي پـلار سره ملګری و او له دې لاري نه يـې پـه جنـګي او پـوځي چـارو کـښي پـوره معلومات اوتجربې حاصلې کړې وې.[۳]

شـاه محمـود وروسـته تـر دې چـي د افغـان شـاهۍ پـر تخـت کښېناست، تر ټولو لومړی د خپل پلار د لاربښوونو د عملـي کولـو پـه سـوچ کښي شو، چي د افغانانو د آزادۍ تامينول او د خاوري بشپړتيا وه، دا هغـه وخت و، چي د هرات غيرتمنو ابداليانو هم د پـارس حکومـت د تجـاوز او بري پرضد راپاڅېدلي وو او د خپلواکۍ بيرغ يې اوچت کړی و.

نو غوره ده پخوا تر دې چـي د شـاه محمـود د آزادۍ غوښتنـي فعاليتونه او اقدامات وليکل شي، د هرات د ابداليانو حالات په لنـډه تـوګه بيان شي.

## د هرات ابداليان :

هغه مهال چي ګرګين لا پر کندهــار بـاندي واکمنـي درلـوده، د کندهار د ابداليـانو پنځوس زره کورنـۍ د ګرګين د ظلمونـو لـه لاسـه لـه کندهاره وتلې او ځيني د شورابک سيمې تـه ولېږدېدلـې او ځينـي د فـراه

---

(۱) جنګ افغان و پارس، ۶۰ مخ.
(۲) سرجان مالکم، ۲۰۰ مخ.
(۳) د ميليسن تاريخ، ۲۲۰ مخ.

په بکوا کښې د هرات له ابدالیانو سره یو ځای شوې.

کله چې د کندهار آزادۍ غوښتونکو ګرګین وواژه او د خپلې آزادۍ او د خاورې د بشپړتیا لپاره یې پاڅون وکړ، نو د هرات آزادۍ غوښتونکو هم د یرغلګرو پرضد د قیام او پاڅون لپاره تیاری وکړ؛ څرنګه چې په همدې مقصد یې د حیات سلطان سدوزي زوی عبدالله خان ( چې بیان یې تېر شو) له ملتان څخه هرات ته وغوښت، خو عبدالله خان په لار کښې د خسرو خان په لاس ورغی، خسروخان له یو دېرش زرو عسکرو سره د صفوي دولت له خوا پر کندهار باندې د تېري او تجاوز او د افغانانو د تباهۍ لپاره مامور شوی و، عبدالله یې له ځان سره ملګری کړ او د افغانانو ترمنځ یې د نفاق او اختلاف پیدا کولو لپاره له ځان سره کندهار ته راوست، کله چې خسرو خان ناکامه او ووژل شو، نو عبدالله خان وخت پیدا کړ چې په ډېر تلوار هرات ته لاړ شي او همله د یرغلګرو په وړاندې د آزادۍ غوښتنې آوازه خپره کړي.

د هرات آزادۍ غوښتونکي عبدالله خان ته راټول شول او له یرغلګرو څخه د نجات د تدبیرونو په فکر کښې وو، خو په هرات کښې د صفوي دولت نماینده عباس قلیخان ، عبدالله خان د آزادۍ غوښتنې د افکارو په ګناه زندان ته ولېږه او بندي یې کړ. خو د هرات آزادۍ غوښتونکو د آزادۍ غوښتنې سپېڅلی غورځنګ خوشي نه کړ، بلکې هغه یې لا پسې توند او زیات کړ، چې د هغه له کبله عباس قلیخان له هراته وشړل شو او صفوي دولت د هغه پرځای جعفرخان هرات ته راولېږه، چې د هرات آزادۍ غوښتونکي وټکوي او مات یې کړي.

دغه وخت عبدالله خان له زندان څخه راوتلی او ( دوشاخ ) نومې غره ته تللی و او له هغه ځایه یې وروسته تر دې چې ابدالي قبیلې او د هرات آزادۍ غوښتونکي راټول کړل، پر اسفزار ( اوسنی شنډنډ ) باندې یې برید وکړ او هغه یې د یرغلګرو له لاسه آزاد کړ او وروسته له هغه چې یې پر هرات باندې چپاو وروړ او د هرات ښار په یوه فرسخۍ کښې یې له صفوي حاکم جعفرخان سره سخته جګړه وکړه، چې په پای کښې د هرات آزادۍ غوښتونکي د ۱۱۲۹ هجري کال د روژې میاشتې پر۲٦مه شپه د برج

له خوا (چي د فيلخانې په برج مشهور دی) او په "عراق دروازه" کښي واقع دی، د زينو په واسطه پورته وختل او هرات ښار يې فتحه او ونيو او تر لږې مودې وروسته يې غوريان، مرغاب او بادغيس سرحدونه هم ټول پخپله ولکه کښي راوستل[1] اوافغاني ملي حکومت يې بېرته تاسيس کړ.

تر هغه وروسته صفوي حکومت يو بل شخص چې صفي قليخان نومېده او پخوا يې د سلطان حسين صفوي په دربار کښي د قاضي القضات رتبه درلوده او له دې کبله چې يو ديندراه او حق ويونکی سړی و، د سلطان درباريانو له ده سره مخالفتونه او دښمني پيل کړه، سلطان هم د درباريانو په تحريک او لمسون دغه قاضي له خپلي دندي ليري کړی و او څرنګه چې د اصفهان دربار د افغان له ازادی غوښتونکو سره د مقابلې لپاره بل سړی نه درلود، نو دی يې راضي کړ او له پنځه دېرشو زرو مجهزو عسکرو او توپخانې سره يې د هرات له ازادی غوښتونکو او ابداليانو سره د مقابلې لپاره ولېږه.[2]

کله چې د صفي قليخان عسکر له اصفهان څخه روا نېدل د اصفهان په ټولو جوماتونو کښي د دوی لپاره د فتحې دعاګاني کېدلې او پخپله پاچا د لښکر د زړورتيا لپاره د دوی د رسم ګذشت ننداره وکړه او د عسکرو د روانېدلو په وخت کښي په زرګونو ښځي او نارينه دسرکونو اولارو پر غاړو ولاړ وو او د فتحې لپاره يې زړورتيا ورکوله.[3]

په دې توګه يو پنځه دېرش زره کسيز لښکر چې په مکمله وسله او توپخانه سمبال و، پر افغاني خاوره د تېري او د هرات د آزادی غوښتونکو د تباه کولو لپاره چې يوازې يې د خپلې خاوري آزادي ساتله له اصفهان څخه هرات ته روان شو.

څرنګه چې ازبکو آزادی غوښتونکو هم د صفوي حکومت پرضد د پارس په پولو کښي قيام کړی او پورته شوي وو، له دې کبله صفي قليخان لومړی د دوی په وهلو او ټکولو پيل وکړ او دوولس زره آزادی غوښتونکي ازبکان يې تباه او بې کوره کړل، وروسته له هغه يې په ډېر غرور او وياړ چې د فاتحانو خوی او خاصه ده، د هرات د ابداليانو او

(۱) جهانکشای نادري، لاهور چاپ، ۴ مخ. کابل کلنی ۱۳۲۴-۱۳۲۵ ل کال، ۲۱۰ مخ.
(۲)، (۳) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۶۶ مخ.

آزادۍ غوښتونکو د ماتولو او بربادۍ لپاره مخکښې لاړ.

د هرات آزادۍ غوښتونکو چې د سرتېرو شمېر یې تر پنځلسوزرو تنو لږ یعنې د پارسي عسکرو نیمایي هم نه و او سربېره پردې یې قوي وسله په تېره بیا یو توپ یې هم نه درلود، د عبدالله خان ابدالي د زوی اسدالله خان په مشرۍ یې د تېري کوونکو په مقابله او دفاع لاس پوري کړ او (کاریز) کلي او (ګوسویه) نومي ځای ته نږدې د متجاوزینو او مدافعینو ترمنځ خونړۍ جګړه پیل شوه او تر نژدې ماښامه پورې څه له پاسه درې زره تنه افغاني آزادي غوښتونکي ځوانان له منځه لاړل، څرنګه چې د متجاوزینو توپخانه ډېره قوي وه، نو اسدالله خان دا لازمه وګڼله چې ناڅاپه یووار پخپل ټول قوت حمله وکړي او له متجاوزینو سره لاس په لاس وجنګېږي.

دې حملې یرغلګر دومره وارخطا او پرېشانه کړل، چې توپخانې یې خپل او پردي ونه پېژندل او پر خپلو عسکرو باندي یې هم په ډزو کولو پیل وکړ او دا پېښه داسې وه چې یو ټولګي افغانانو د یرغلګرو د توپخانې د سختو ګولیو اورولو له کبله یوه غونډۍ له لاسه ورکړه، چې د صفي قلیخان عسکرو ونیوله، خو څرنګه چې له یوې خوا د ماښام تیاره او د ګولیو اورېدلو او ډزو ګرد و غبار زیاتېدل، نو له بلې خوا یرغلګر د ازادۍ غوښتونکو د ناڅاپي حملې له کبله وارخطا شوي وو، نو یرغلګرو توپچیانو پر خپلو عسکرو باندې چې غونډۍ یې نیولې وه، د افغاني عسکرو ګومان وکړ او سختې ډزې یې ور باندې وکړلې او ګولۍ یې وربانديي واورولې او خپل ډېر عسکر یې پخپلو توپونو ووژل.

دغه وضعیت د یرغلګرو وارخطایي او پرېشاني نوره هم زیاته کړه، هغو کسانو چې د افغانانو د توپونو له نشتوالي څخه خبر وو، دا یې د خپلو توپچیانو یو خیانت وباله، خو هغو کسانو چې خبر نه وو، دا ګومان یې وکړ چې دا یو جنګي چل و، چې د افغانانو له خوا ترسره شوی دی.

په هر صورت، د صفي قلیخان په عسکرو کښې سخته او فاحشه ماتې پېښه شوه، تر دې چې په پای کښې صفي قلیخان او زوی یې له اتو زرو تنو عسکرو سره ووژل شول او نور عسکر یې هر لوري ته وتښتېدل افغانانو فتحه وکړه او له یرغلګرو څخه یې شل توپونه، له نورو ډېرو ولجو او

او غنیمتونو سره ونیول[1] او دغه پېښه په ( ۱۷۱۹ م ) کال کښي وشوه.[2]

تر هغه وروسته اسدالله خان (له مشهد پرته) نور ټول غربي خراسان ونیو او آزاد یې کړ. له هغه وروسته یې فراه ته مخه کړه او هغه یې هم ونیوله[3] اوپه دې توګه دهرات ابدالیان دهغه ولایت خپلواک حکمرانان شول.[4]

## د شاه محمود او اسدالله خان جګړه:

په همدغو وختونو کښي چي اسدالله خان ابدالي فراه له یرغلګرو څخه آزاده کړه، شاه محمود د سیستان د نیولو او آزادۍ په فکر کښي شو او په ۱۱۳۲ هـ کال کښي له ډېرو عسکرو سره له کندهاره د فراه خوا ته روان شو، خو څرنګه چي فراه د اسدالله خان په لاس ورغلې وه، د اسدالله خان لښکر د شاه محمود عسکرو ته د تېرېدلو لار ور نه کړه او له بده مرغه همدغه سبب د (خاشرود) پر غاړه او د جهانکشای نادري په وینا د فراه او زمینداور ترمنځ په (دلارام) نومي ځای کښي د دوو افغاني خواکونو ترمنځ نښته وشوه، چي له بده مرغه په لومړۍ نښته کښي اسدالله خان ووژل شو.

شاه محمود ددې پېښې له کبله ډېر زیات خپه او خواشینی شو او له همدې کبله یې نور ونه غوښتل چي له خپلو هېوادوالو سره وجنګېږي، بېرته کندهار ته راغی[5] او ابدالي لښکر هم د اسدالله خان تر وژل کېدو وروسته بېرته هرات ته لاړ.[6]

د اسدالله خان پلار عبدالله خان چي د زوی په مړيني سره یې سخته روحي صدمه لیدلې وه، نور یې نه شول کولای چي د هرات د ابدالیانو د ریاست کارونه سمبال کړي، له دې کبله عبدالغني خان الکوزي چي د هغه ځای په ابدالیانو قبیله کښي یې ډېر نفوذ او اعتبار درلود، ددولتخان

(۱) د تتمة البیان ژباړه، کابل چاپ، ۸۳ مخ.
(۲) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، ۶۷ مخ.
(۳) جهانکشای نادري، لاهور چاپ، ۷ مخ. حیات افغاني، ۱۲۶ مخ.
(۴) تاریخ سلطاني، ۹۸ مخ. حیات افغاني ۱۲۶ مخ.
(۵) کابل کلنی، ۱۳۲۴ – ۱۳۲۵ ل کال، ۲۱۰ مخ. جهانکشای نادري، ۵ مخ.
(۶) تاریخ سلطاني، ۹۹ مخ. حیات افغاني، ۱۲۷ مخ.

زوی او د اعلیحضرت احمدشاه بابا پلار زمانخان یې د هرات د ابدالیانو په ریاست وټاکه.

زمانخان چې یو پوه، هوښیار او فعاله سړی و، د هرات ټول افغانان یې د یرغلګرو پهوړاندي متحد او یو لاس کړل او د صفوي دولت حاکم جعفرخان او نور یرغلګر مامورین یې چې د هرات له آزادۍ غوښتونکو سره بندیان وو، د هرات د باغ نو په سړک کښې له منځه یووړل. کله چې صفوي دولت یو بل ستر لښکر د صفي قلیخان ترکمان په قومندانۍ د هرات د ابدالیانو او آزادۍ غوښتونکو د تباهۍ لپاره د مشهد له لاري ولېږه، نو زمانخان د هرات د آزادۍ غوښتونکو په مرسته د کافرکلا په ډګر کښې د یرغلګرو پهوړاندي سخت مقاومت وکړ، سره له دې چې د افغاني آزادۍ غوښتونکو شمېر د یرغلګرو د عسکرو په نسبت ډېرلږ و، خو د هغې فداکارۍ او مینې له کبله چې له خپلې آزادۍ سره یې درلوده، د یرغلګرو لښکر ته یې ماتې ورکړه او هغه یې مغلوب کړ او صفي قلیخان یې هم وواژه، تر هغه وروسته، زمانخان دوه کاله او پنځه میاشتې د هرات د ابدالیانو مستقل رئیس و[1] او په ((۱۱۳۵ ه)) کال ومړ. د زمانخان تر وفات وروسته د عبدالله خان زوی محمدخان د هرات د ابدالیانو د ریاست مشري په غاړه واخیستله او په (۱۱۳۵ ه کال) کښې یې پر مشهد باندې چپاو وروړ او څلور میاشتې یې د مشهد ښار کلا بند کړ، د خراسان په شاوخوا کښې د ده واکمنې قوي شوه او د غوریان سیمې په لوېدیځ کښې یې سنګان کلا ونیوله.

تر محمد خان وروسته په ۱۱۳۶ هـ کال د زمانخان مشر زوی ذوالفقارخان د هرات د ابدالیانو له خوا له شورابک څخه وغوښتل شو او د ابدالیانو په ریاست وټاکل شو، چې دوه کاله یې ریاست وکړ. په (۱۱۳۸ هـ) کال کښې د عبدالله خان بل زوی الله یارخان د هرات د ابدالیانو په غوښتنه له ملتان څخه راغی او ابدالیانو ریاست ده ته وسپارل شو او تر (۱۱۳۹ ه) کال پوري چې نادرافشار پر مشهد باندې چپاو وروړ د هرات د

(۱) تاریخ سلطاني، ۱۰۰ مخ. حیات افغاني ۱۲۷ مخ. کابل کلنی ۱۳۲۴ – ۱۳۲۵ ل کال، ۲۱۱ مخ.

ابدالیانو مستقل رئیس و(۱).

**له شاه محمود څخه د کرمان د خلکو غوښتنه:**

شاه محمود په (۱۱۳۳ هـ) کال (بیجن سلطان لکزی)(۲) په کندهار کښې په مشرۍ پرېښود او پخپله د هغه سوتفاهم دلیري کولو لپاره چې د ده او د هرات د ابدالیانو ترمنځ د پردیو په تحریک او لمسون پیدا شوی و او د هرات د ابدالیانو او هوتکیانو ترمنځ د اتحاد او یووالي د ټینګېدو په باب د خبرو لپاره فراه ته روان شو.

کله چې فراه ته ورسېد، د کرمان خلکو چې د شهدادخان بلوڅ له حملو او یرغلونو څخه په تنګ شوي او د خپلو کورونو په پرېښودلو مجبور شوي وو، له شاه محمود څخه وغوښتل چې له هغوی سره مرسته وکړي(۳).

شاه محمود هم د هغوی غوښتنه ومنله او هغې خوا ته روان شو، که څه هم د سیستان رېګستان د شاه محمود عسکرو ته په مزله کښې ډېرې ستونزې او خنډونه پیدا کول او د خوراکي موادو، غلې او وښو د نشتوالي له کبله پخوا له دې چې کرمان ته ورسېږي د سر و مال ډېر تلفات او زیانونه ور ورسېدل، بیا هم کله چې کرمان ته ورسېد، د هغه ځای خلکو د ده راتګ ښه ګاڼه او له هر ډول مقابلې او خپګان پرته ورته تسلیم شول.(۴)

---

(۱) کابل کلنی، ۱۳۲۴-۱۳۲۵ ل کال، ۲۱۲ مخ.

(۲) د دغه سړي په نوم کښې اختلاف دی، داستان ترکتازان هند، جهانکشای نادري او تاریخ سلطاني دی په همدې نوم یعنې (بیجن سلطان لکزی) یادوي او سلطان محمد دا هم وايي: هغه مهال چې د بلوڅو طایفې د کرمان په لوټ او تالا کولو پسې رواني وې او د کرمان خلکو د محمود د ورتګ غوښتنه وکړه، له دې کبله محمود بیجن سلطان لکزی چې په فراه کښې اوسېده د کندهار نایب مقرر کړ او پخپله کرمان ته روان شو. (تاریخ سلطاني، ۷۴ مخ، داستان ترکتازان هند، څلورم کاخ، ۱۵۲ مخ) خو خورشید جهان دی (بیجن سلطان الکوزی) لیکي: (۱۳۳ مخ) او قاضي عطاالله دی د (بیرمخان) په نامه یاد کړی دی. (د پښتنو تاریخ ـ لومړی ټوك، ۶۸ مخ).

(۳) داستان ترکتازان هند، څلورم کاخ، ۱۵۲ مخ. تاریخ سلطاني، ۷۴ مخ.

(۴) تاریخ ایران، سرجان مالکم، ۲۰۱ مخ.

### د لطف عليخان تيارى :

صفوي حکومت چي له شاه محمود څخه د کرمان د خلکو له غوښتنو او هغه ته له تسليمېدو څخه خبر شو، نو د بندر عباس حاکم لطف عليخان يې چي د صفوي دربار د صدراعظم فتح عليخان ورور همدا راز د هغې دورې له بهادرو او تجربه کارو جنرالانو څخه و او هم يې په خلکو کښي ډېر نفوذ درلود، مامور کړ چي د شاه محمود مقابلې ته لاړ شي.

لطف عليخان هم سملاسي له يو ستر او مجهز لښکر سره د کرمان خوا ته چپاو ورور او د کرمان ښار په شا و خوا کښي د شاه محمود او لطف عليخان ترمنځ يوه خونړۍ جګړه ونښته.

څرنګه چي له يوې خوا افغاني ځواکونو ته د سيستان د رېګستان د ستونزو له کبله د سر و مال درانه زيانونه رسېدلي وو، نو له بلي خوا همغه وخت شاه محمود ته له کندهاره خبر ورسېد، چي بيجن سلطان د ملک جعفرخان په مرسته چي بندي و، د کندهار د نورو پارسيانو په ملګرتيا په کندهار کښي اغتشاش پيدا کړی او غواړي چي د افغانانو د ملي حکومت انتظام ګډوډ کړي او افغاني هېواد بيا د پرديو تر ولکې لاندي راولي، له دې کبله شاه محمود د لطف عليخان له هوسا او تازه عسکرو سره نوره مقابله لازمه ونه بلله او په کرمان کښي د نهو مياشتو تر تېرولو وروسته[1] د بيجن سلطان او د ده د ملګرو د ټکولو او له دغه فساد څخه د منع کولو لپاره بېرته کندهار ته راغی. لطف عليخان هم په کرمان کښي د يو څه مودې تر تېرولو وروسته شېراز ته لاړ او هلته يې د عسکرو په تنظيم او ځواکمنولو لاس پوري کړ.

خو د لطف عليخان دې بري او شېراز ته تګ د صفوي دولت وزيران او نور خودخواه اراکين سخت په تشويش کښي واچول، ځکه چي له يوې خوا د لطف عليخان ورور صدراعظم و او له بلي خوا پخپله د لطف عليخان نظامي لياقت په دربار کښي د ده نفوذ زياتاوه، له دې کبله صفوي استفاده جويو درباريانو د دغو دواړو ورونو

(۱) داستان ترکتازان هند، ۴ کاخ. ۱۵۲ مخ، جهانکشای نادري، ۱۳ مخ.

شتون د خپلو شخصي استفادو په لار کښي لوی خنډونه بلل او تل د دوی د لیري کولو لپاره په فکر کښي وو، تر دې چې یوه شپه د پاچا خصوصي امام او حکیم سلطان حسین صفوي ته ورغلل او هغه ته یې په عجیبو او غریبو کلماتو او عبارتونو د سلطنت زوال څرګند کړ او د پاچا په زړه کښي یې دومره وېره پیدا کړه، چي پاچا په هماغه شپه د دربار د خصوصي اراکینو غونډه جوړه کړه او کله چي د دربار اراکینو هم د امام او حکیم له وینا سره موافقت ښکاره کړ، نو سلطان په هماغه شپه د صدراعظم فتح علیخان د نیولو حکم صادر کړ او په هماغه شپه یې دغه بېچاره له دواړو سترګو محروم کړ او په زندان کي یې واچاوه، تر دې چي دوه کاله وروسته په زندان کښي مړ شو او په هماغه شپه یې د شیراز حاکم ته د هغه د ورور لطف علیخان د نیولو او بندي کولو امر ولېږه.

خو، د لطف علیخان نیول کوم اسانه کار نه و، ځکه چي په عسکرو او خلګو کښي یې ډېر نفوذ درلود، نو په تګی او چل سره یې د شپې دننه کلا ته د ډوډی لپاره وغوښت او ناڅاپه یې ونیو او اصفهان ته یې ولېږه او په دې توګه اصفهان دربار له یو لایق جنرال څخه بې نصیبه شو او د عسکرو په تنظیم کښي خلل او پاشلتیا پیدا شوه.(۱)

### کندهار ته د شاه محمود بیا ستنېدنه :

دمخه مو وویل چي شاه محمود په کرمان کښي د نهو میاشتو تر تېرولو وروسته د بیجن سلطان او د ده ملګرو د تنبیه کولو او سزا ورکولو لپاره بېرته کندهار ته راغی، خو پخوا له دې چي کندهار ته ورسېږي، بیجن سلطان او ملک جعفرخان له خپلو نورو ملګرو او باغیانو سره د شاه محمود د کشر ورور میرحسین هوتک له خوا مغلوب شو او له خپلو ملګرو سره د خپلو اعمالو په سزا رسول شوی او اعدام شوی و.(۲)

کله چي شاه محمود له دې اندېښني څخه بېغمه شو، نو دوه کاله په کندهار کښي د افغاني ځوانانو په پوځي روزنه او تنظیم بوخت شو، یوې خوا یې د پوځي او خوراکي ذخیرو په ټولولو او زیاتولو او د

---

(۱) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۶۹ _ ۷۰ مخونه .

(۲) د افغانستان تاریخ، میلیسن، ۲۲۶ مخ. د پښتنو تاریخ ، اول ټوک، ۶۸ مخ .

د دفاعي کلاګلانو په ټينګولو او په استحکاماتو کښي زيار وايست او له بلې خوا يې د ملي يووالي او د ټولو افغاني قبيلو د يووالي په ټينګولو کښي هم هڅه وکړه، چي په نتيجه کښي ټولي افغاني قبيلې د شاه محمود په لاربنوونه د ملي يووالي تر بيرغ لاندي راټولې شوې او د آزادۍ ساتني په لاره کښي يې له هغه سره د هر ډول قربانۍ ورکولو ژمني وکړې.

## کرمان ته دويم تګ:

شاه محمود تر دوو کلونو وروسته بيا کرمان ته د تګ نيت وکړ او د ۱۷۲۲ م کال د جنورۍ په مياشت ( ۱۱۳۵ هـ ) کال کښي له يو ۲۵ زره کسيز لښکر سره[1] چي زياتره له افغاني قبيلو څخه جوړ شوی و چي څو زره يې له هزاره وو او بلوڅو قومونو څخه وو، له کندهاره د کرمان خوا ته روان شو او په لږه موده کښي د سيستان له ريګستان څخه تېر شو. لومړی يې (بام) کلا ونيوله او ډېر پوځي لوازم، سامانونه او خوراکي مواد يې په هغه ځای کښي ذخيره کړل او د هغو اداره يې نورالله خان ته وسپارله چي يو زړور او فعاله سړی و[2] او پخپله د کرمان خوا ته لاړ.

د کرمان د شا و خوا ځايونو خلک ده ته تابع او تسليم شول، خو پخپله د کرمان ښار کلا چي کندهار ته د شاه محمود تر بيا تګ وروسته د لطف عليخان له خوا چي د عسکرو او پوځي تجهيزاتو له کبله ډېره ټينګه شوې وه، فتحه نه شوه.

يوازي محاصره شوه. تر يو څه مودې محاصرې وروسته د کلا حاکم او ساتونکي شاه محمود ته د سولې شرطونه ولېږل او له شرطونو څخه يې يو دا و چي د کرمان د کلا حاکم به شپږ زره او دوه سوه او پنځوس پونډه د تاوان د جبران لپاره شاه محمود ته ورکړي، په دې شرط چي شاه محمود کلا خوشې کړي،

(۱) تاريخ کښونکي د لښکر په شمېر کښي اختلاف لري: محمدمهدي، خواندمير او شېرمحمد (اته زره) ليکي، چي دغه شمېر د يوې داسې ستري حملې لپاره په عقل برابر نه راځي، بنايي چي (۲۸) زره وي، ځکه چي قاضي عطاالله خان هم ۲۸ زره ليکلي دي. ميليسن، سيد جمال الدين او سرجان مالکم يې شمېر (۲۵) زره بللی دی.

(۲) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۷۰ مخ.

او له هغي ځخه تېر شي.[۱] شاه محمود چي د کلا د خرابولو نیت یې نه درلود، د قوم له مشرانو سره یې تر مشورې وروسته د سولې شرطونه ومنل او له کرمان ځخه د یزد ښارخوا تـه چـي څه لـه پاسـه د صفـوي دولـت د پایتخت (اصفهان) په دوه سوه او لس میلۍ کښي پروت و، روان شو.

د کرمـان او یـزد ترمنـځ لاره، وچ او سـوځوونکی شـګلن ډاګ ( رېګستان ) و، له دې کبله د ډېرو سـتونزو تـر زغملـو وروسـته یـزد ښار تـه ورسېد، چي یوه ستر خندق یزد ښار احاطه کړی و.

شاه محمود هغه محاصره کړ، خو ځرنګه چي یو کوچنـی ښار و نو نیول یې د افغاني عسکرو د پوځي بري په لار کښي چندان اغېزنـاک او ګټور نه لیدل کېده او هم د نادرشاه د کتاب د لیکوال LocKhart. په قول شاه محمود ونه غوښتل چي خپل وخت د دغه کـوچنـي ښار پـه محـاصره ضایع کړي.[۲] له دې کبله یې یزد ښار د محاصرې په حال کښي پرېښود او پخپله د اصفهان خوا ته روان شو. کله چي د اصفهان سل میلۍ ته ورسېد، د صفوي دولت صدارعظم محمد قلیخان ده ته یو لیک ولېږه او پکښي لیکـل شوي وو چي که چیري افغاني عسکر له هغه ځای ځخه مخکښي لاړ نه شي او بېرته پر شا لاړ شي، نو صفوي دولت حاضر دی چي شاه محمـود تـه ۳۷ زره پونډه ورکړي.

خو شاه محمود چي له یوې خوا یې تصمیم درلود دښمـن پخپـل کور کښي مغلوب او مات کړي او له بلي خـوا ښایـي پـه دغـه انتقام چـي پارسیانو پر کندهار باندي حکومـت کـړی، بـاید افغانـان هـم پـر اصفـهان بـاندي تسـلط وموـمي، نـو د محمـد قلیخـان لیـک یـې پـه تمسخر سـره ور رد کړ او ان د هغه ځواب یـې هم ورنه کړ.[۳] تر هغه وروسـته د اصفـهان ښار خوا تـه مـخ پـه وړانـدي لاړ او ( ګلنابـاد ) تـه چـي د اصفـهان ښار د

(۱) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۷۱ مخ. خو سید جمال الدین د پیسو اندازه دوه زره اوپنځه سوه تومانه لیکلې ده، ۸۶ مخ.

(۲) Nadir Shah LocKhart, page 8

(۳) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۷۱ مخ

ختیځ په دوولس میلی کښې پروت دی، ورسېد.[۱]

**شاه محمود په اصفهان[۲] کښې:**

شاه محمود چي په پسرلي کښې اصفهان ته رسېدلی و او په هغه موسم کښې زنده رود سیند چي د اصفهان ښار په جنوب کښې تېرېده سخته مستي درلوده، اوبه یې ډېري زیاتي شوې وې او له پلونو پرته پر بله لاره د ښار کلا ته ننوتل ډېر ستونزمن څه چي ناممکن معلومېدل.

سربېره پردې پلونه د درنو توپونو په واسطه ساتل کېدل او افغانانو له یو ځو کوچنیو توپونو (زنبورک) پرته نور توپونه نه درلودل، له دې کبله شاه محمود خپلو عسکرو ته چي شمېر یې شل زره[۳] او په یو بل قول ۲۳ زره تنه وو[۴] وروسته ترادې چي یې د ګلناباد په آواره ځمکه کښې د خپلو کمپونو ګردچاپېره لوی لوی خندقونه وکیندل، د استراحت امر یې ورکړ.

هغه وخت په اصفهان ښار کښې شپږ لکه نفوس او شپېته زره تنه وسلوال او مجهز عسکر اوسېدل.[۵] کله چي سلطان حسین صفوي ګلناباد ته د شاه محمود له رسېدو خبر شو، نو سملاسي یې د وزیرانو غونډه جوړه کړه، چي د عربستان والي عبدالله خان هم پکښې ګډون کړی و.

صدراعظم محمود قلیخان پاچا ته نظریه ورکړه چي عسکر باید

---

(۱) تاریخ افغانستان، ن – پرسي سایکس، ۳۲۶مخ او په انګرېزي ژبه د نادرشاه کتاب، ۸ مخ. د قاضي عطاءالله په کتاب کي د ګلناباد فاصله تر اصفهانه لس میله لیکل شوې ده، ۷۱ مخ.

(۲) اصفهان ښار د زنده رود پر شمالي غاړه پروت دی او د ښار له کلا نه یې ګردچاپیره د ېوالونه راتاو کړي وو، لکه چي سرجان مالکم لیکي چي په پسرلي کښې به د زنده رود سیند او به دومره زیاتېدلې چي له پلونو پرته ښار ته د تګ راتګ بله لار ممکنه نه وه او تر ټولو لوی پل یې ۳۳ چینې درلودلې او په څلورو خواوو کښې یې څلور برجونه جوړ شوي وو، چي هرې خوا ته یې چت لرونکي غرفې درلودې. هغه لوی سړک چي نوموړی پل ورسره یو ځای کېده، درې زره قدمه اوږد او اویا قدمه پلن و او هغه د چارباغ خیابان بلل کېده (تاریخ ایران، سرجان مالکم).

(۳) سر پرسي سایکس، ۷۱ مخ. (۴) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۷۱ مخ.

۵. د پښتنو تاریخ ـ لومړی، ټوک ۷۲ مخ.

د ښار ساتلو لپاره له ښاره دباندې لاړ شي او له خپلو کمپونو نه دې ګردچاپېره ژور خندقونه وکیني او زیاته یې کړه: "که څه هم افغانان د جګړې په ډګر کښې بریالي کېږي، خو په محاصره کښې لاسبري نه دي، لکه چې د کرمان او یزد ښارونو محاصرې یې ونه کړای شوې..."

هغه دا هم وویل: "... ښه دا ده چې د ښار په ساتنه او مدافعه کښې کوښښ وکړو او د جنګ ډګر ته و نه وځو، څکه که چیري په وژلو او قتل و قتال پیل وکړو، نو په دغو لړو او بیدو عسکرو او د اصفهان په خلګو چې ټول په ناز و نعمت او استراحت کښې روزل شوي، ممکنه نه ده چې کوم کار سر ته ورسولای شو ..."[1]

سلطان حسین د محمود قلیخان له نظریې سره موافقت درلود، خو د عربستان والي عبدالله خان د محمدقلیخان نظریه بې زړه توب او وېره وګڼله او ویې ویل: "که چیري په یو څو تنو افغانانو کې د شاه محمود په خبر یو سړی د ایران د سلطنت تخت محاصره کړي او ایرانیان دننه په ښار کښې د وېرې له لاسه په لړزه وي، نو غوره دا ده چې هغه ښار چې دغسې ساتل کېږي، دښمن ته وسپارل شي اوکه داسې نه وي نو پرېږدئ چې دباندې لاړ شو او په مېړانه کوښښ وکړو، څکه چې ښایي د دښمنانو سرونه د هغوی په خواوو کښې ورته کښېږدو..."[2]

په هغه مجلس کې ستورپوهان، فال لیدونکي او ملایان هم حاضر وو، چې مشر یې فتح علیخان قاجار و، هغه په ډېره سنجیدګۍ سره سلطان حسین ته مشوره ورکړه: په استرآباد کښې یوې زړې ښځې چې له جن او پیریانو سره سروکار لري ماته ویلي دي، چې که چیري د پسونو دوې پښې د مړو انسانانو له درې سوه او پنځوسو "پلو" سره واېشول شي او پر هغوی یوه پېغله نجلۍ یوزر او دوه سوه واري (**لااله الاالله**) ووایي، بیا نو که هرڅوک له دې ښوروا څخه لږڅه وڅکي، هیڅوک یې لیدلای نه شي.[3]

(۱) تاریخ ایران، سرجان مالکم او د سیدجمال الدین افغان، تتمة البیان ۸۷ مخ.
(۲) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، پېښور چاپ، ۷۲ مخ.

سلطان حسین چي له یوې خوا یې د عربستان د والي د تودو ویناوو له کبله د زړورتوب وینه په جوش راغلې وه او له بلې خوا یې د فتح علیخان قاجار په اړه اوریدلي وو، نو د جنګ امر یې صادر کړ او هم یې امر وکړ چي د پسونو له پښو څخه هغه ښوروا چي فتح علیخان یې د جوړولو لارښوونه کړې وه، د صفوي لښکر لپاره تیاره کړي.

خو د سرجان مالکم په قول د صفوي لښکر بری له هماغي لومړۍ ورځي او د لښکر لېږلو له څرنګوالي څخه ناشونې ښکاریدله؛ ځکه چي د صفوي لښکر قومنداني دوو تنو یعنې صدراعظم محمدقلیخان او د عربستان والي عبدالله خان ته وسپارل شوه، چي د یوه نظریه د بل له نظریې څخه سخته مخالفه وه: محمدقلیخان غوښتل چي د ښار دفاع وکړي، خو عبدالله خان پر افغاني لښکرو د حملې امر وکړ.

## د جګړې ډګر:

د۱۷۲۲ م کال د مارچ په ۷ مه نېټه څه لـه پاسه پنځوس زره تنه پارسي مجهز او وسلوال پوځیان له ډېرو لویو توپونو سره پر شلو زرو بې توپ او بې توپخانې افغاني عسکرو باندي د حملې لپاره په ډېر غرور، شان و شوکت له اصفهان ښاره راووتل، افغاني عسکرو یوازي سل زنبورک توپونه (کوچني ځرخېدونکي توپ پرته چي دوه پونډه ګولۍ یې اورولای شوې او په انګلیسي هغه Swirels Vasps لیکل شوی دی) نور هیڅ لوی توپ نه درلود.[1]

د دغو دوو لښکرو مخامخېدل، چي د تجهیزاتو له مخي خپل ترمنځ هیڅ د پرتلې وړ نه وو او یو تر بله یې ډېر توپیر درلود، یوه ښه ننداره او تماشا وه، سرجان مالکم د دغو دواړو خواوو د پوځیانو وضعیت داسي تمثیلوي:

"... په ټولیز(عمومي) ډول پنځوس زره تنه شاهي لښکر له شلو توپونو سره تر ښار دباندي ووتل، کله چي ګلناباد ته ورسېدل د دواړو لښکرو مقایسه له ننداري څخه تشه نه وه: ایراني لښکر تر و تازه او په فاخره جامو پټ او د آسونو عراق یې ټول زرین او ښه چاغ آسونه وو، چي چا به ورکتل ټول د

(۱) persia پرشیا، سر پرسي سایکس، ۸۷ او ۸۸ مخونه.

تجمل او ښه ځرنګوالي اسبابونه وو.

او په بله برخه کښې افغاني عسکرو ژېړ - ژېړ رنګونه، شکیدلي جامې او خوار او ډنګر اسونه درلودل او داسې ښېې او سایه بانونه یې نه لرل، چې دوی یې د لمر له تودوخې څخه ساتلي وای او په ټول لښکرکښې چې کوم شی ځلاند او د پام وړ و، د دوی نېزې او توري وې".(۱)

په دې توګه دواړه لښکري د مارچ په اتمه ورځ د لمرختو په وخت د ګلناباد د ختیځ په دوه میلی کښې سره مخامخ شوې.

دېرش زره پارسي سپاره په دوو برخو او ډلو ووېشل شول(۲) او پیاده او توپخانه نظام د دواړو ډلو په مرکز کې واچول شو.

د ګرجستان د والي ورور د خاص پوځ فرمان ورکوونکی رستم خان، د پارسي لښکر د ښي اړخ او دکیڼ اړخ ( جناح ) اداره د صدراعظم محمدقلیخان پر غاړه وه، د عربستان والي به پنځوسوو تنو عربو د ښي اړخو او د لارستان والي علي مردان خان په پنځو سوو تنو د کین اړخو مرسته او معاونت کاوه.(۳)

افغاني عسکر په څلورو برخو وېشل شوي وو: ښي اړخ د امان الله خان له خوا او کیڼ اړخ د نصرالله خان له خوا اداره کېده او په خپله شاه محمود پر فیل باندي سپور او د عسکرو په منځ کښې و(۴) او زنبورکونه د عسکرو تر شا په ترتیب کښېښودل شوي وو.

لومړی حمله د عربستان د والي په واسطه د پارسیانو د ښي اړخو له خوا د افغاني عسکرو پر کیڼ اړخو باندي وشوه، ځرنګه چې د پارسیانو شمېر ډېر زیات و، نو افغاني عسکرو مقاومت ونه شو کړای او لږ پر شا لاړل، اعتمادالدوله ( صدراعظم محمدقلیخان ) چې د افغانانو پر شاکېدل ولیدل، نو له کیڼ اړخو څخه یې د افغانانو پر ښي اړخو باندي برید وکړ، ده هم تر یو حده بری تر لاسه کړ او افغانان یې تر شا کړل.

شاه محمود چې پر یوه غونډۍ باندي ولاړ و او د جګړې حالت او وضعیت ته یې کتل، خو د خپلو افغاني عسکرو د ښي او کیڼ اړخو د تر شا کېدو له کبله یې خپل روحیات له لاسه ور نه کړل، په داسې مهارت یې

---

(۱) تاریخ ایران، سرجان مالکم.

(۲) سرپرسي سایس ۸۷-۸۸مخونه.

(۳) (۴) تاریخ ایران، سرجان مالکم.

چې له یوه تجربه لرونکي جنرال څخه په داسي خطرناک وخت کښي تمه کېږي، سملاسي یې ځان هلته ورساوه او پرشاتللي افغاني عسکر یې بېرته تر تنظیم لاندي ونیول او په لوړ آواز یې ورته وویل: "که چیري بریالي شئ او فتح وکړئ، د اصفهان دولت ستاسو مکافات او پاداش دی او که چیري وتښتئ، نو د تېښتي لاره هم نه لرئ، ارو مرو به د دښمن په لاس په ډېر ذلت او بدنامۍ سره د اجل د زهرو پیاله وڅښئ."[1]

نو بیا یې د منظمي نقشې له مخي خپلو عسکرو ته امر وکړ چې پر شا شي. پارسي عسکرو چې دغه پرله پسې شاتګ وکوت، هغه یې د افغانانو ماتي خوړل وګڼل او مخکښي راغلل، تر دې حده پوري چې د هغو زنبورکونو تر نفوذ لاندي راغلل، چې د اوښانو په شاوو پوري تړل شوي او اوښان د افغاني لښکرو تر شا په ځانګړي ترتیب پراته وو، په دې وخت کښي شاه محمود زنبورکونو ته د ډزو کولو امر وکړ او د زنبورک توپونو دغه ناڅاپي ډزي دومره اغېزناکي پربوتې، چې نه یوازي پارسي لښکر په ناڅاپي ډول له سختي او فاحشي ماتي سره مخامخ شو، بلکې د پارسیانو پنځه ویشت لوی لوی توپونه هم بېله دې چې کوم ډز وکړي، د افغانانو لاسته راغلل.[2] او د صفوي لښکرو نظام دومره ګډ وډ او خراب شو چې خپلو ټولیو ورباندي ګولۍ اورولې.[3] او د قاضي عطاالله په وینا پنځه ویشت زره تنه پارسي عسکر ووژل شول.[4] چې په دې جمله کښي د پاچا د غلامانو مشر رستمخان او د عمومي توپخانې آمر احمدخان هم شامل وو[5] او نور پاتي عسکر یې وتښتېدل او زیاتره یې بېرته خپلو ولایتونو ته لاړل، تاریخ کښونکو په دغه جګړه کښي د افغاني عسکرو د ښي اړخ د قومندان امان الله خان قابلیت او جلادت ستایلي دي، خو دا چې افغانانو د پارسي عسکرو له تعقیب څخه لاس واخیست، نو دا د اصفهان

(۱) (۲) د سیدجمال الدین افغان تمتة البیان، کابل چاپ، ۸۸ مخ. تاریخ ایران، سرجان مالکم.
(۳) سرپرسي سایکس، ۸۷ – ۸۸ مخونه.
(۴) سرجان مالکم د پارس د وژل شویو کسانو شمېر دوه زره تنه لیکي.
(۵) دپښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۵۷ مخ.

ښار نیولو د ځنډېدلو لامل شو، د ځینو تاریخ کښونکو په نزد دا یوه پوځي تېروتنه ګڼل شوې ده، کله چې د پارسیانو د ماتي خبر اصفهان ښار ته ورسېد، نو د ښار خلک له سختي پرېشانۍ سره مخامخ شول، سلطان حسین هم وارخطا شو او سملاسي یې د دربار اراکین د فوق العاده او پوځي غونډې لپاره راوبلل، کله چې غونډه جوړه شوه، اعتمادالدوله پاچا ته وړاندیز وکړ چې سملاسي له اصفهان څخه ووزي او له سلطنتي خزانې سره قزوین ته لاړ شي او له هغه ځایه خلکو ته فرمان راولېږي، چې له ښار څخه دفاع وکړي، موږ به د شا له لوري پر افغاني لښکر باندي حمله وکړو[1]. ده دغه دلیل راوړ، چې که چیري د اصفهان ښار له پاچا او خزانې څخه تش شي، نو بیا به د افغانانو په نزد د هغه اهمیت کم شي، پاچا او ځینو نورو اراکینو دغه رایه خوښه کړه، خو د عربستان والي یې مخالفت وکړ او ویې ویل: " له پلازمېنې (پایتخت) څخه د پاچا وتل، تېښته بلل کېږي او پاچا چې ونه کړای شي، د یوې وړې ماتي په وړاندي ځان وساتي، نو ژر به د عامو خلکو د بېزارۍ سبب شي او که په خپله وتښتېد، نو نور به یې له تېښتي څخه منع نه کړای شي."[2]

پاچا هم له احساساتو څخه کار واخیست د عربستان والي یې د اصفهان د والي په توګه وټاکه او د اصفهان ښار د کلا د ټینګولو او د کلا برجونو ته د توپونو خېژولو او د عسکرو د بیا تنظیمولو امر یې صادر کړ.

له بلې خوا شاه محمود د ښار له کورنیو حالاتو څخه د معلوماتو حاصلولو لپاره څو تنه جاسوسان دننه ښار ته ولېږل، وروسته تر دې چې مخبرینو د ښار د خلکو له عمومي پرېشانۍ او اندېښنې څخه ده ته خبر ورکړ شاه محمود د فرح آباد خوا ته چې د اصفهان د ښار په درې میلۍ کښې و او له ښاره دباندي د سلطان حسین یوه مانۍ شمېرل کېده، چپاو وروړ. که څه هم یوه ټینګه کلا وه، خو که چیري ساتونکو یې په دفاع کښې کوښښ کړی او پښې یې خرلې وای، نو افغاني لښکر یې څو ورځي ځنډولای شو، خو د کلا ساتونکي چې څنګه افغاني عسکر وروړسېدل له هغه

(۱) تتمة البیان ۸۹ مخ.
(۲) تاریخ ایران، سرجان مالکم، تتمة البیان، هماغه مخ.

خایه وتښتېدل او کلا له کوم مقاومت پرته لـه څو تـوپو نـو سـره د افغـاني عسکرو لاسته ورغله.

تر هغه وروسته شـاه محمـود د اصفـهان د ارمينـانو د اسـتوګنې د ځای ( جلفا ) کلي نيولو لپاره افغانان مامور کړل، دغه کلی د اصفهان ښار د جنوب په يو نيم ميلی کښي د ( زنده رود ) سيند پر غاړه پـروت و او ارمنـي عسکر په کي اوسېدل، ارمنيان د دفاع لپاره چمتو شول، خو افغانـانو پخـوا له دې چي ارمنيان کوم برى لاسته راوړي، يو بهرنی برج ونيو او وروسته تر دې چي يې د کلا د دېوال په يوه برخه کښي سوری او درز پيدا کړ، نو پـه يوه حمله کښي يې جلفا کلا ونيوله او په دې توګه د ( زنده رود ) سـيند پـه جنوبي خوا کښي له جلفا څخه تر عباس آباده پوري ځايونه په بشپړ ډول د افغانانو تر واک لاندي راغلل او د افغان لښکر مرکز د چار باغ په سړک کښي وټاکل شو.[1] د ۱۷۲۲ م کال د مارچ په ۲۱ مه نېټه شاه محمود له دغه ځايـه پراصفهان ښار بريد وکړ او ويې غوښتل چي تر ټولو لومړی د زنـده رود سـتر پل لاسته راوړي او د پل تر نيمايي پوري هم مخکښـي لاړ. خـو څـرنـګه چي پل د هغو سترو توپونو په واسطه ساتل کېده، چـي پـه برجونـو کـښي کېښودل شوي وو، افغانانو د توپونو د سختو ډزو پروړاندي کوم کار ونه شـو کړای، نو بېرته پر شا شول او خپل مرکز ته لاړل.

### د شاه محمود د سولي وړانديز:

څـرنـګه چي شـاه محمـود تصميـم نـه درلـود، لـه دې زيـات د اصفـــهان د خرابـــی او د هغـــه ځای د خلــکو د تباهـــــی لامـــل شـي او دا هيلــه يـــې هـــم درلــوده، چـــي د افغـــان او پـــارس دواړو هېوادونـو ترمنـځ د شـرافتمندانه سـولي لـه لاري يـو د بــل پــر خــاوره د تــېري او د آزادی د ســلبېدو مخـــه چـــي طبعـــاً د ډېرو وينـــو توپـېدلـو سـبب ګرځېده، پـه غـوڅ ډول ونيـول شـي او د هغـو پـرځای د دواړو هېوادونو د پوره خپلواکی او د متقابل درناوي فضا پيدا شي او لــه بلې خوا مقابل لوري د ماتي او تقاعد وضعيت اختيار کړی و. له دې کبله له افغـــاني مشـــرانو ســـره تـــر مصلحـــت او مشـــورې وروســـته دغـــه

(۱) سر جان مالکم.

شرطونه او د سولي وړاندیز سلطان حسین صفوي ته ولېږه او د سولي د ترون غوښتونکی شو:

۱ – صفوي پاچا دي شاه محمود د کندهار، خراسان او کرمان د خپلواک او مستقل پاچا په توګه وپېژني[۱] او دغه سلطنت دې د میراث په ډول د شاه محمود په اولادې پوري اړه ولري.[۲]

۲ – د پارس حکومت دې پنځوس زره تومانه، افغاني حکومت ته ورکړي.[۳] البته دغه به د هغو زیانونو او تلفاتو عوض وي، چې د صفوي حکومت د یرغلونو له کبله افغانانو ته رسېدلي وو.

۳ – د پارس سلطان دي خپله لور، شاه محمود ته په نکاح کړي[۴] او یو لک او پنځه ویشت زره پونده دي په جهیز کښي ورته وټاکي.[۵]

دربیمه ماده څرګندوي چې شاه محمود د زړه له کومې د افغان او پارس د دوو سلطنتي کورنیو ترمنځ د دوستۍ غوښتونکی و او هیله من و، ده غوښتل د دغو دوو کورنیو ترمنځ داسې ټینګه رابطه پیدا شي، چې د هغې له کبله د دواړو هېوادونو ترمنځ ټول اختلافونه لیري شي. خو له بده مرغه چې سلطان حسین د شاه محمود دغه ښه نیت، هیله او دغه سوله ناک وړاندیز ونه مانه او ببرته یې د خپل دولت او ملت د تباهۍ سببونه او د بربادۍ زمینه برابره کړه او د پارس او افغان د خواکونو ترمنځ بیا د وینو تویېدلو لامل شو.

په همدغه وخت کښي شاه محمود ته د عربستان د والي، چې د اصفهان د والي په توګه یې کار کاوه، پټ پیغام ورسېد او دی یې د سولي غوښتني په نیت ملامت کړی او ویلي وو: "موږ او تاسو په مذهب کښي شریک یو، ثابت قدمه اوسه دمحاصرې له وېرې مه وارخطا کېږه."[۶]

شاه محمود چې له یوې خوا د سولې له ترون څخه نهیلی شوی و او له

(۱) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۷۷ مخ.
(۲)، (۳) تتمة البیان، ۸۹ مخ.
(۴) تتمة البیان، ۸۹ مخ. تاریخ ایران، سرجان مالکم،
(۵) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۷۷ مخ.
(۶) تتمة البیان، ۹۰ مخ.

مقابلې پرته یې بله چاره نه لیدله، له بلې خوا یې د بري لپاره زمینه برابره ولیده، نو بیا یې د اصفهان د نیولو او د صفوي دولت له منځه وړلو تصمیم ونیو.

لومړی یې د خوراکي موادو رسېدلو ټولي لارې چې ښار ته تللې بندي کړې او هر څومره غله یې چې له ښاره دباندې کلیو څخه لاسته راوړله هغه یې افغاني عسکرو ته ذخیره کوله، په کلیو کښې د قحطې له کبله ډېرو خلکو ښار ته مخه کړه، لومړی د دولت چارواکو د کلیو خلکو ورتګ او پناه غوښتنه د ځان د قوي کېدو سبب وباله او خوشحاله شول، خو څو روځې وروسته یې ولیدل چې د ښار د خلکو لوږه وار په وار زیاتېږي او د هغوی د خوراک لپاره یې کومه وسیله او چاره هم نه درلوده.

دې وضعیت د دولت چارواکي څه، چې د ښار ټول اوسېدونکي تر پخوا زیات پرېشان او وارخطا کړل، په تېره بیا چې دا یې واوریدل: هغه کاروان چې په پټه یې ښار ته غله راوړله، د افغانانو لاسته ورغلی او نیول شوی دی، نو د ښاریانو وېره ډېره زیاته شوه.

له بلې خوا افغانانو ، عباس آباد پل له ګرجي عسکرو او ساتونکو څخه په یوه حمله کې ونیو او له هغه نه تېر شول او اصفهان ښار یې له نژدې څخه تر محاصرې لاندې ونیو.

همدغه وخت یو ټولګی هغه افغانان چې د امان الله خان تر قومندې لاندې وو او د خوراکي موادو دوه بارخانې یې نیولې وې او خپل اردو ځای ته بېرته را روان وو ( اصفهانک ) نومي ځای ته نږدې چې د اصفهان ښار په درې میلی کښې پر یوه غونډۍ باندې پروت و، د دغه کلي د خلکو او د ګلناباد له جنګ څخه د تښتېدلو عسکرو له خوا چې دغه ځای ته یې پناه وړې وه، ناڅاپه تر حملې لاندې راغلل او له دغه ټولګي افغانانو څخه زیات کسان یا ووژل شول او یا ونیول شول، چې دبندیانو په جمله کښې دشاه محمود اکا یعنې تره، دوه تنه زامن او

يو ناسکه ورور هم ګڼ و.[۱]

کله چې شاه محمود له دې پېښې څخه خبر شو، سملاسي يې سلطان حسين ته قاصد ولېږه او د افغاني بنديانو د سرساتنه يې وغوښتله، وايي چې سلطان حسين هم سملاسي د ميرزا رحيم نومي سړي په واسطه (چې له باوري منصبدارانو څخه و) د اصفهانک کلي خلکو ته پيغام ولېږه، چې د بنديانو په سرساتنه کښي پاملرنه وکړي، خو کله چې د ده پيغام ورسېده، د اصفهانک خلکو پخوا ټول افغاني بنديان وژلي وو. له دې کبله شاه محمود ډېر زيات په غوسه شو او امر يې وکړ چې ټول پارسي بنديان دي چې دده په اردو کښي شته، اعدام کړي او تر هغه وروسته يې پر اصفهان ښار باندي د محاصرې کړۍ دومره تنګه او ټينګه کړه، چې هيڅ ژوندی له بهر څخه ښار ته او له ښاره دباندي تللای نه شو.

د محاصرې موده اوږده شوه او دننه په ښار کښي خوراکي مواد مخ پر کمېدو او تمامېدو شول، د ښار د خلکو چغې پورته شوې او شاهانه حرمسرای ته يې نژدې په مظاهرو پيل وکړ او له پاچا څخه يې وغوښتل چې له ښاره ووزي او د دې پرځای چې ټول له لوږې ومري نو دا ښه ده چې دباندي له افغانانو سره وجنګېږي.

سلطان حسين به د نن او سبا وعدې ورکولې او هيله يې درلوده چې زوی به يې شاه طهماسب چې له محاصرې څخه څه موده پخوا په پټه وتلی او کاشان او قزوين ته تښتېدلی و او کوښښ يې کاوه چې له اطرافو نه د شاه محمود په مقابل کښي يو لښکر برابر کړي، يو کار وکړي. خو زوی يې له هيڅ خوا ونه شول کړای، چې د پلار د مرستي لپاره يو لښکر برابر کړي او له بلي خوا خلګو له خپلو مظاهرو څخه لاس نه اخيست، لکه چې د سلطنتي حرمسرای ساتونکو څو واري د مظاهره کوونکو د تيت او پرک

(۱) لکه چې معلومه شوې ده، ميرويس دوه وارثان زامن (شاه محمود او شاه حسين) درلودل، دغه ناسکه ورور چې تاريخ کښونکي يې لکه سرجان مالکم، سيدجمال الدين افغان، قاضي عطاالله خان او نور ليکي، معلوم نه شو چې څوك دی؟

کولو لپاره ډزي هم وکړې، چي دغه کار د خلګو قهر او غوسه نوره هم پسې زیاته کړه او نژدې وو، چي دننه پر حرمسرای چپاو وروړي، په دې وخت کښي سلطان حسین احمدآغا نومي خواجه سرای چي په خلګو کښي یې څه ناڅه محبوبیت درلود او د ښار په مدافعه کښي یې فعالیت او زړورتیا ښوولې وه، د خلګو په غلي کولو اود افغانانو په مدافعه مامور کړ.[1]

احمدآغا لومړی مظاهره کوونکي دلاسا کړل او بیا یې د یو ټولګي عسکرو په مرسته پر افغانانو باندي حمله وکړه او د سختي مقابلې له کبله یې وکړای شول چي افغانان څه نا څه پرشا کړي او ځیني ځایونه هم بېرته له افغانانو څخه ونیسي.

خو په همدغه وخت کښي چي جنګ لا روان و، عربي عسکر چي د عربستان د والي تر قومندې لاندي جنګېدل قصداً پر شا لاړل او دغه کار احمدآغا ډېر په قار کړ او خپلو عسکرو ته یې امر وکړ چي پر عربي عسکرو ډزې وکړي.

په دغه وخت کښي چي دوی په خپلو منځو کښي سره ونښتل افغاني لښکر وخت غنیمت وګاڼه او په ډېره تونده یې پر مقابل لوري باندي حمله وروړه او په یوه حمله یې سلطنتي عسکر مات کړل.[2]

احمدآغا، سلطان حسین ته ورغی او د عربستان د والي له لاسه یې شکایت ور ته وکړ او ویې ویل چي دی هر وخت د شاهي عسکرو د ماتي سبب شوی او له محمود سره د مذهبي یووالي له مخي متحد او یو شوی دی. خو څرنګه چي د عربستان والي سلطان حسین ته ډېر نژدې او محبوب و، نو د احمدآغا خبره یې وانه وربده، بلکي د عربستان والي په اشاره یې احمدآغا له عسکری منصب څخه لیري کړ او لکه چي تاریخ کښونکي لیکي: دی یې د سهار پر وخت د خوب په بستر کښي مړ وموند.[3] سید جمال الدین افغان لیکي: "ده د دې معزولېدو له کبله زهر وخوړل او مړ شو".[4] تر دې وروسته د سلطان حسین امیدونه یو په بل پسې په

(۱) تتمة البیان، ۹۱ – ۹۲ مخونه.
(۲) تاریخ ایران، سرجان مالکم.
(۳) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، ۷۸ مخ.
(۴) تتمة البیان، ۹۲ مخ.

نهیلۍ بدلېدل، تر دې چې په پای کښې یې شاه محمود ته پیغام ولېږه، چې دده همغه درې لومړني شرطونه منې او د هغو پر بنسټ سولې ته چمتو دی. خو شاه محمود د سلطان د پیغام په ځواب کښې داسې وویل:

"اوس د پارس د پاچا په لاس کښې څه نه دي پاتې، چې ما ته یې راکړي، هغه څه چې شته ټول زما د واکمنې په قبضه کښې دي"[1] او دا یې هم وویل چې:" اوس له دریو هېوادونو "کندهار، خراسان او کرمان" څخه بحث نه دی، بلکې مسئله پخپله د ده او د ده د ټولو هېوادونو په هکله ده".[2]

په دې وخت کښې شاه محمود ته خبر ورسېد چې ملک محمود سیستاني له لسو زرو او په بله وینا له دوولسو زرو تنو سره[3] د ګلناباد شاوخوا ته رسېدلی او له سلطان حسین سره د مرستې او د اصفهان د آزادۍ خیال لري، شاه محمود سملاسي له ملک محمود سره په مفاهمه لاس پورې کړ او ځینې تحفې او سوغاتونه یې هم ورولېږل او په سیستان پورې یې د خراسان د ټرلو او ټولو د سیستان او خراسان د حاکم په توګه د ملک محمود د پېژندلو زمنه ورکړه، ملک محمود سیستاني هم موافقه وکړه او د مشهد خوا ته لاړ.

اوس چې له بهر څخه د اصفهان د ژغور وروستنۍ هیله په نهیلۍ بدله شوه او دننه په اصفهان کښې هر ډول خوراکي مواد تمام شول، لکه چې لیکي: د اوښانو، کچرو او خرو غوښې په ډېر لوړ قیمت شتمنو، بډایو او امراوو ته رسېدلې، خزانه هم تشه شوه، د سپینو زرو سلطنتي لوښي یې هم ویلي کړل او ویې لګول. لښکر ډوډۍ نه درلوده، د خلکو او رعیت حال کرار کرار ډېر خراب شو او د اوربشو د یوې ډوډۍ بیه د هغه وخت څلورو تومانو ته ورسېده.[4]

له دې کبله په پای کښې تر اتو میاشتو محاصرې وروسته چې

(۱) تتمة البیان، سیدجمال الدین افغان، ۹۲ مخ.
(۲) تاریخ ایران. سرجان مالکم.
(۳) د افغانستان تاریخ ـ میلیسن.
(۴) تاریخ ایران ـ سرجان مالکم.

له تسليمېدو پرته د دفاع هيڅ خواک او چاره پاتي نه شوه، د ۱۷۲۲ م کال د اکتوبر په ۲۱ مه ( ۱۲۳۵ هـ کال)[۱] د صفوي کورنۍ وروستنی پاچا سلطان حسين د دربار له ټولو چارواکو او منصبدارانو سره د ماتم په تورو جامو کښې له شاهي حرم څخه راووت او د اصفهان په کوڅو کښې ګرځېده او په ژړا يې ويل: "دغه ټول مصيبتونه او بلاګاني چې زما د حکومت په زمانه کښې د خدای جل جلاله پر بندګانو او د فارس پر ښارونو او کليو باندي نازلي شوي دي، د ناصحانو د خيانت او د مشاورينو د بې دينۍ له لاسه دي".[۲]

او خلکو ته به يې ويل: "اوس ټينګه اراده دا ده، چې تخت و تاج افغانانو ته پرېږدم." خلکو چې د ده خواشيني، غمګيني، سوز و ګداز وليدل، نو خپل مصيبتونه او د پاچا عيبونه يې هېر کړل او له ده سره يې د اوښکو په بهولو سره همدردي ښکاره کړه.

### د شاه محمود تاجپوشي:

سلطان حسين صفوي د۱۷۲۲ م کال د اکتوبر په ۲۲ نېټه شاه محمود ته يو پيغام ولېږه، چې مطلب يې دا و: " زه خپل سلطنت او پاچهي تاسو ته درپرېږدم ".[۳]

د هغې ورځي په سبا ( د۱۷۲۲ م کال د اکتوبر ۲۳= ۱۱۳۵ هـ کال د امامانو (محرم) مياشتي ـ په ۱۱ مه نېټه) دی پخپله د عربستان له والي عبدالله خان او د دربار له ځينو چارواکو او درې سوه تنو سپرو سره له اصفهان ښاره د شاه محمود اردو ځای ته دباندي لاړل، کله چې فرح آباد (د شاه محمود استوګنځي ته) ورسېدل، د شاه محمود شاهي ګارد له دې کبله چې افغان پاچا لا ويده دی، څه له پاسه نيم ساعت يې هغوی له مانۍ څخه دباندي وځنډول او تر هغه وروسته يې هغوی ته د ورتګ اجازه ورکړه.

کله چې سلطان حسين صفوي دېوان خانې ته ورسېد، شاه محمود پر زرين بالښت (متکا) تکيه کړې ناست و، تر دې چې سلطان حسين د دربار مخې ته ورسېد، شاه محمود ته يې سلام واچاوه، له هغه نه

(۱)، (۲) تتمة البيان، ۹۳ مخ.
(۳) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۷۹ - ۸۰ مخونه.

وروسته شاه محمود جګ شو، ودرېد او پخپله خوا کښي يې هغـه تـه ځای ورکړ، تر هغه وروسته سلطان حسين، شاه محمـود تـه خطـاب وکړ او ويـې ويل: "زما زويه! د پاک خدای ﷻ اراده نه ده چـې زه تـر دې زيـات پـاچـا واوسم، اوس هغه وخت رارسېدلی دی، چي ته د ايـران پـر تخـت بـاندي کښېنې. ما خپل سـلطنت تاسـو تـه درپرېښود، پـاک خـدای ﷻ دي ستاسـو مرستندوی وي."[۱] په دغه وخت کښي سلطان حسين شهنشاهي تـاج پخپـل لاس د شاه محمود پر سر باندي کېښود او د سلطنتي خزانو کيلی ګاني يـې هغه ته وسپارلې، شاه محمود هغه ومنلې او ويې ويل:

"د دنيا شوکت، جاه او جلال، اقبال او بې ثباتي همدغســي دي. (ان الله يوتی الملک من يشاء ويـنزع الملک ممـن يشـاء). د ملک مـالک خدای تعالی ﷻ دی، هر چاته يـې چي وغواړي ورکوي يـې او له هـر چـا نه يـې چي وغواړي، نو له هغه څخه يـې اخلـي او بـل تـه يـې ورکـوي. يعنې له يوه څخه يـې اخلي او بل ته يـې ورکوي. خـو زه تاسـو تـه ډاډ او وعده درکوم چي تاسو د خپل پلار په توګه ګڼم او په چارو او کارونو کـښي به له تاسو څخه مشوره او سلا غواړم."[۲]

سيدجمال الدين افغان ليکي: پـه هماغـه مجلس کـښي سـلطان حسين خپله لور شاه محمود ته په نکاح کړه.[۳]

په هر صورت، مجلس تر چـای څښلـو وروسـته پايتـه ورسـېد او د مجلس په ختمېدو سره د صفوي کورنۍ سلطنت هم پايته ورسـېد او د هغـه پرځای افغاني شهنشاهي ودرېدله. شاه محمود په هماغه ورځ ټولي پـوځي ذخيرې او د وسلو او سلطنتي خزانې يوه په بـل پسـې پخپلـه قبضـه کـښي ونيولې.

## د چارو اداره:

د ۱۱۳۵ هجري کال د امامانو مياشتي په ۱۴مـه نـېټه شاه محمـود په هغه دبدبه او جاه و جلال چي د فاتحينو ځانـګړنه ده، اصفهان ښار تـه لاړ

(۱) تاريخ ايران، سرجان مالکم.
(۲) تتمة البيان، ۹۴ مخ. دپښتنوتاريخ، لومړی ټوک ۸۰ مخ. تاريخ ايران، سرجان مـالکم.
(۳) تتمة البيان، ۹۴ مخ.

او د هغه وخت په دوديزو تشريفاتو پر شهنشاهي تخت بـاندي کښېناسـت او وروسته تر دې چي سلطان حسين او د صفوي دربار نـورو اراکينـو هغـه تـه سلام وکړ، شاه محمود رسماً د سلطنتي چارو اداره په لاس کـښې ونيولـه او خطبه او سکه يـې پخپل نوم کړه.

بيا يـې تر ټولو لومړی د سلطان حسين د اسـتوګني لپـاره وړ ځای برابر کړ او پوره معاش يـې ورته وټاکه.

تر هغه وروسته هغه موضوع چي سملاسـي اقـدام يـې غوښتـه او شاه محمود په ډېر جديت ورته پاملرنه وکړه، د ښار له خلګو څخه د قحطۍ او لوږي ليري کول وو او ده په هغو تدبيرونو سره چـي د منصبدارانـو او قوم د مشرانو په مشوره او همکارۍ يـې تر اجرا لاندی ونيول، په لږه مـوده کښې يـې وکړای شول چي د محتکرينو له ګدامونو څخه غلې را وباسـي او محتکرين پخپلو ګدامونو کښې د خپلو اعمالو په سزا ورسوي او هم يـې نور خوراکي او ارتزاقي مواد د ښار له شاوخوا کليو څخه دننه ښار تـه راوړل او خلګو يـې له ډېرې لوږي او پرېشـانۍ څخـه ژغـورل او د خلـکو د اعتمـاد جلبولو او د امن تامينولو او د خلګو د ژوندانه د حالاتو د ښه کولو لپـاره ده او د ده همکارانو تر وروستي حده هڅه وکړه او افغاني عسکرو تـه يــې په ټينګه امر وکړ، چي په هيڅ ډول له هيچا سره بد چلند، سختـګيري، ناروا او ناوړه چلند ونه کړي او د تاريخ کښونکـو پـه وينـا د شـاه محمـود عـدل او مساوات خوښونه دې درجې ته ورسېدله، چي نور د افغـاني او پارسـي تـر منځ هيڅ توپير او امتياز نه ليدل کېده.[۱]

سربېره پر دې هغه شی چي زيـاتره د اصفهان د خلـکو د بـاور او اطمينان جلبولو سبب شـو، دا و چـي زيـاترو پخوانيـو مـامورينو تـه خپـل پخواني ماموريتونه ور وسپارل شول، يعنې په هــر خدمـت چـي د سـلطان حسين صفوي په دروه کښې ورباندي مامور وو، بيا پر همغو خدمتونو وټاکـل شول. خو د دې لپاره چي د کارونو په ترسره کولو کښې د دوارو خـــواوو د نظـر پـوره يـووالی موجـود وي او کارونـه د ځنډ او معطلۍ لـه حالتـه د

(۱) د پښتنـو تـاريخ، لومـړی ټوک، ۸۱ مـخ. تتمـة البيـان، ۹۴ مـخ. تـاريخ ايـران، سرجان مالکم.

جديت او فعاليت وضعيت ته را ووزي، نو په هره اداره کښي يو يو تن افغان مامور هم وټاکل شو، چي ورسپارل شوي کارونه يو د بل په مرسته او همکارۍ مخ پر وړاندي بوزي. يوازي يې د شيخ الاسلام او قضاوت دنده يو تن افغاني عالم ملا پيرمحمد مياجي ته چي په ( پير افغان ) مشهور و وسپارل شوه.(۱)

شاه محمود له هغو کسانو سره چي له سلطان حسين صفوي سره يې خيانت کړی و او د جنګ او محاصرې په وخت کښي يې له شاه محمود سره پټه ليدنه کتنه درلوده، د عربستان له والي پرته يې نور، ټولو ته سختي جزاګاني ورکړې او دعربستان له والي څخه يې دمالونو په ضبطولو اکتفا وکړه.(۲)

بالعکس يې هغو کسانو ته چي تر پايه پوري له سلطان حسين سره وفادار پاتي شوي او له شاه محمود سره يې مقابله کوله، ښه انعامونه ورکړل او ويې نازول، په دې توګه شاه محمود او همکاران يې دخلکو د هوسايي او ښېګني او د امن ټينګولو لپاره شپه و ورځ کوښښ کاوه، تر دې چي په لږه موده کښي يې وکړای شول چي د سلطان حسين د زمانې زياتره بې نظمي، رشوت اخيستنې، ګوندبازۍ او غلاګاني له منځه ليري کړي او د خلکو د ډاډ او د زړونو جلبولو او لاسته راوړلو سببونه برابر کړي، چي له دې کبله شاه محمود د خپل سلطنت په پيل کښي نېک نوم او ښه شهرت پيدا کړ.

له بهرنيو اتباعو سره يې هم ښه چلند او وړ وضعيت غوره کړ، له هغو اروپايانو سره چي په هغه زمانه کښي يې په اصفهان او بندر عباس کښي تجارتخانې درلودلې، شاه محمود امر وکړ چي هر هغه رعايت چي د پخوانيو پاچايانو په زمانه کښي د دوی په حق کښي معمول و، په هماغه ډول او طرز مقرر وي او هم يې د هغوی مذهبي مبلغينو ته پوره خپلواکي ورکړه.(۳)

---

(۱) د ملا پيرمحمد مياجي حال شرحه، د دې کتاب د هوتکي دورې د نوميالو په برخه کښي ولولئ.

(۲) ميرويس نيکه، ۱۱۱ مخ. تتمة البيان ۹۴ مخ.

(۳) تاريخ ايران، سرجان مالکم.

خو له بده مرغه په همدغو وختونو کښي چي شاه محمود او همکاران یې په ډېرو اصلاحاتو بوخت وو، څو ناوړي پېښې رامنځته شوې، چي نه یوازي د شاه محمود دوستانه او اصلاح غوښتونکي احساسات یې اړ کړل چي د اصلاحاتو او ودانۍ پرځای وینو تویولو او خرابۍ ته لاس وغزوي، د دغو پېښو اجمال داسي و:

شاه محمود د اصفهان او د هغه د توابعو او مربوطاتو تر نیولو وروسته د (۱۱۳٦ ه) کال په ژمي کښي خپل مشهور جنرال امان الله خان او د خپل تره زوی اشرفخان له شپږو زرو تنو عسکرو سره د سلطان صفوي د زوی طهماسب میرزا د ماتولو او ټکولو لپاره چي د خپل پلار تر سقوط وروسته یې په قزوین کښي د پاچهۍ اعلان کړی و، هغې خوا ته ولېږل، چي هلته هم په امن ټینګولو او اصلاحاتو پیل وکړي.

امان الله خان او اشرف خان هغه ښارونه چي د قزوین د لاري پر سر وو، لکه کاشان، قم او داسي نور، له جنګ او جګړې پرته ونیول.

په قزوین کښي هم طهماسب میرزا د افغانانو له خوا ماتي وخوړه او د اذربایجان خوا ته وتښتېد او قزوین ښار هم دافغانانو لاسته ورغی.

افغانانو له هغو لارښوونو سره سم چي شاه محمود ورته کړې وې، وغوښتل چي د قزوین له خلګو سره دوستانه چلند وکړي او د هغوی په اعتماد جلبولو کښي هڅه وکړي، خو د هغه ځای مذهبي متعصبینو د افغانانو پر خلاف په پټو دسیسو لاس پوري کړ او د هغوی یوه دسیسه اغېزناکه تمامه شوه او له قزوین څخه د افغانانو د وتلو سبب شوه، هغه دا وه چي پر یوه ټاکلې شپه له هغو افغانانو څخه یې زیات شمېر کسان چي دننه په قزوین ښار کښي وو په انفرادي ډول یو یو تن جلا جلا خپلو کورونو ته بوتلل او مېلمانه یې کړل، افغانانو هم له ډېرې ښې باورۍ او ښه نیت څخه د هغوی بلني دوستانه وګڼلې او قبولي یې کړې. د شپې په تیاره کښي ناڅاپه د کورونو خلګو پر بې وسلې او بې خبرو مېلمونو باندي حمله وکړه او په هماغه شپه یې په دغه چل سره څه له پاسه زر تنه افغانان ووژل[1].

(۱) جهانکشای نادري، دغه مطلب داسي لیکي: ((کوربه وو توري راوایستې او د هر کور خلګو مېلمانه په تورو ووهل او ډېر عسکر یې مړه کړل.))

سبا ته هغو افغانانو چي له ښاره دباندي اوسېدل په مقابله پيل وکړ، خو څرنګه چي يې خپل قومندان امان الله خان هم ټپي شوی و او له بلي خوا سخت ژمی هم و او خوراکي او نور اړتيا وړ مواد يې کم شوي وو، نو نور يې په ځان کي د مقاومت ځواک ونه ليده، يوه برخه افغاني پوځيان له امان الله خان سره د اصفهان خوا ته روان شوه، چي هغه هم د سرجان مالکم په وينا زياتره يې د قزوين او اصفهان ترمنځ لاره کي تلف شول او يوه برخه نور پوځيان چي درې سوه تنه وو، د شاه محمود د تره له زوی اشرفخان سره د کندهار خوا ته لاړل.[۱]

د قزوين تر ېښتي وروسته د خنسار او د نورو لويو او کوچنيو ښارونو خلکو د افغانانو په مقابله او دفاع لاس پوري کړ او افغاني پوځيان کرارکرا له ليريو ښارونو څخه د اصفهان خوا ته مخه کړه.

همدغه وخت شاه محمود ته يو بل ناوړه خبر ورسېد، چي هغه له يو لک او پنځوسو زرو تومانو خزانې تلفېدل او لوټېدل وو، چي شاه محمود هغه د ملا موسٰى خان په واسطه د نويو عسکرو د برابرولو لپاره کندهار ته لېږلې وه؛ خو په لاره کي د سيستان په مربوطاتو کي ميرزاي اسمعيل په حاکم بنده نومي ځای (د سيستان له کلاګانو څخه په يوه کلا کي) پر ملا موسٰى چپاو وروړ او خزانه يې ورڅخه لوټ کړه.

له بلي خوا د پارس بهرنيو سياسي حالاتو ته هم ځيني ګوابنونه متوجه شوي وو، لکه چي د پتر کبير سفير په همغو ورځو کي اصفهان ته راغی او د خپل دولت مطالب او غوښتني يې شاه محمود ته وړاندي کړې. په مطالبو کي ويل شوي وو، چي لزګيه قوم پر شماخي يرغل کړی او روسي اتباعو ته يې زيان رسولی دی او هم يې ويلي وو چي د خوارزم خان د روسيې يوه قافله چي له چين څخه راتله، لوټ او تالا کړې ده، له دې کبله روسيې حکومت د رسېدلي زيان جبران غواړي.

خو لکه چي سرجان ملکم ليکي، دا هسي پلمې وې او په حقيقت کي څرنګه چي د روسيې حکومت د پارس د وروستيو حالاتو له

(۴) تتمة البيان، ۹۴ – ۹۵ مخونه. تاريخ ايران، سرجان مالکم.

خرابۍ څخه خبر شوی و، غوښتل یې چې له وخت څخه استفاده وکړي او د خزر سیند لویدیز سواحل لاسته راوړي او د خپل تجارت لمن پراخه کړي او د دغه مقصد د ترسره کولو لپاره یې دېرش زره تنه مجهز عسکر تیار او منظم کړي وو او د قزاق او قالمون له طایفو څخه هم ځیني کسان چې د هشدرخان په شاوخوا کښي اوسېدل له دغو عسکرو سره یو ځای شوي وو.

کله چې د روسیې سفیر خپل مطلبونه او غوښتني شاه محمود ته وویلې: شاه محمود په ځواب کښي وویل: څرنګه چې تر اوسه پوري پر لږکي طایفه باندي سلطه او قبضه نه لرم، نو په دې اړه کوم اقدام هم نه شم کولای[1].

هغه وو چې د ۱۷۲۲ م کال د جولای په ۲۹ مه نېټه د روسیې عسکر له ولګا سیند څخه را پورېوتل او دربند یې ونیو او د نورو ښارونو د نیولو لپاره یې هشتدرخان نومي سیمه خپل نظامي مرکز وګرځاوه.

له بلې خوا عثماني دولت هم خپلو پولو ته نږدې په تېریو پیل وکړ او څو ښارونه یې ونیول.

دغو پر له پسي او ډول ډول پېښو د شاه محمود اعصابو ته سخت تکان ورکړ، چې د هغو له کبله د شاه محمود نرم زړه کرار کرار سخت زړه او مجبور شو چې د امن ټینګولو او د هغو الوګولو او احتجاجونو د کرارولو په مقصد چې د ده په مقابل کښي کېدې، په تشدد او وینو تویولو لاس پوري کړي. لکه چې د هغو باغیانو او نورو هغو خلګو زیاته برخه یې چې له هغوی څخه د ده سلطنت ته خطر موجود و، له منځه لیري کړه او ورځ په ورځ یې خپله سختګیري او تشدد زیاتاوه، تردې چې د ده په طبیعت کښي له ډېر عصبیت او بې اعتمادۍ سره مل یو ډول زیروالی او تشدد پیدا شو، چې ان له خپلو افغاني همکارانو سره یې هم سخت او د بې اعتمادۍ چلند کاوه او زیاتره افغانان یې له ځانه خپه کړل. له همدې کبله د ده مشهور سپه سالار امان الله خان له ډېرو افغانانو سره د شاه محمود له اجازې پرته کندهار ته روان شو.

کله چې یوه برخه افغانان پخوا د شاه محمود د تره له زوی

(۱) تاریخ ایران، سرجان مالکم.

اشرفخان سره کندهار ته تللي وه او يوه زياته برخه نور افغانان له امان الله خان سره لاړل، نو له دې کبله له شاه محمود سره د افغانانو يو پوره پوځ پاتي نه شو او شاه محمود اړ شو چي د کرد طايفې يو زيات شمېر ځوانان چي اهل سنت او جماعت وو، پخپلو عسکرو کښي شامل کړي او په ۱۷۲۴ م کال يې د نصرالله خان په قومنداني چي په (ګبر)[1] مشهور و، يو ځه عسکر د پارس له لاسه وتلو ځمکو د بېرته نيولو په موخه د عثماني دولت په مقابل کښي ترتيب کړل او د عراق زياته برخه يې له ترکانو څخه بېرته ونيوله او هم يې د ګلپايکان، خوانسار او کاشان ښارونه لاسته راوړل خو د شېراز ښار په نيولو کښي نصرالله خان سخت ټپي شو او د عسکرو اداره زبردستخان افغان[2] ته، چي يو ازمويل شوى او زړور سړى و، وسپارل شوه.

زبردستخان تر اتو مياشتو محاصرې وروسته په ۱۱۳۷ هـ کال کي شېراز ښار ونيو او هم يې بندر عباس (چي پنځه کاله پخوا د شاه محمود په امر د پنځو زرو بلوڅو په واسطه فتحه شوى و، خو له دې کبله چي د پرنګ د کارخانو خاوندانو لا تر دې وخته پوري هم په هغه ځاى کښي ځيني امتيازونه درلودل، نو بشپړه فتحه نه ګڼل کېده) تر خپل نفوذ او استفادي لاندي راوست.

خو زبردستخان چي دغه ځاى ته ورغى، د هغه ځاى له نامساعدې هوا سره مخامخ شو او له بلې خوا يې ښار له خلکو خالي وموند، نو يوازي يې د لېږدول کېدونکو غنيمتونو او ذخيرو په اخيستلو اکتفا وکړه او بېرته لاړ.

تر دې فتحې وروسته شاه محمود زبردستخان له دېرشو زرو تنو سره د اصفهان په جنوب کښي د (کويليلو) ښار په نيولو مامور کړ، خو د هغي سيمي (چي د سمندر په خوا کي پرته وه)، نامساعدې هوا ناخاپه افغانان په خطرناکي ناروغۍ اخته کړل، چي د هغې له کبله مجبور شول بېرته وګرځي.

---

(۱)، (۲) د نصرالله او زبردستخان افغان د حال شرحه د هوتکي دورې د نوميالیو په برخه کښي ليکل شوې ده.

په دې وخت، کله چې شاه محمود له یوې خوا په خپلو عسکرو کښي ډېر لږ افغانان درلودل. چې هغه هم د شاه محمود د بدخویۍ له امله بې ميني او د شاه محمود د تره له زوی اشرفخان سره يې علاقه او دلچسپي ښودله او له بلي خوا د شاه محمود دماغ د دغو شخړو، جنګونو او جنجالونو په وجه ستومانه شوی و او غوښتل يې چې ځانته يو ګوښه ژوند ولري، له دې کبله يې يو دوستانه او د دلاسايۍ لیک اشرف خان او امان الله خان ته ولېږه او له هغوی څخه يې وغوښتل چې له تازه دمو افغاني عسکرو سره له کندهاره اصفهان ته لاړ شي.

اشرفخان او امان الله خان د هغه غوښتنه ومنله او د شاه محمود له مور او يو ټولګي افغانانو سره اصفهان ته لاړل.

شاه محمود د افغاني مشرانو او عسکرو په غوښتنه او ټينګار اشرفخان د وليعهد په توګه او په خپله يې په رياضت لاس پوري کړ او چلې يې وايستلې، لکه چې يو ځل يې په زېرزمينۍ کي دوه مياشتي ځان د رياضت په نامه بندي کړ او پر له پسې روژې يې ونيولې، چې تر هغه وروسته يې دماغ د ليونتوب په يو ډول وسواس اخته شو او د هغې له کبله يې عصبيت او بدګوماني ورځ په ورځ زياتېدله، له افغانانو او پارسيانو څخه يې يو شان اعتماد ليري شو. هر څوک چې به يې ليده د خپل سر دښمن به يې باله او په لږو ګناهونو به يې درنې سزاګاني ورکولې.

چې د ۱۷۲۵م کال د فرورۍ په ۷ مه نېټه شهزادګانو سلطان حسين په دې ګناه، چې له دوی نه يو تن له اصفهان څخه وتښتېد او د ده د سلطنت د بربادۍ توطيه او لاري يې برابرولې وواژه او پخپله سلطان يې چې د شهزادګانو د نجات لپاره يې شفاعت کاوه ټپي کړ او کله چې يې د هغه ويني وليدلې، نو تبغ يې له لاسه وغورځاوه.(۱)

تر هغه وروسته، د شاه محمود دماغ بېخي له کاره ووت، د معدې او فلج ناروغي هم ورته پيدا شوه او لکه چې ليکل شوي د ده لېونتوب دې

(۱) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوك، ۸۴ مخ.

حد ته ورسېد، چي پرخپل خان به يې خوله لګوله.[1]

**د شاه محمود سرېنه:**

په پای کښي په ۱۱۳۷ هـ کال/ ۱۷۲۵ م کال د (۲۷) کلو په عمر وفات شو.[2] خو د شاه محمود د مړيني په علت کښي اختلاف دی: ځيني تاريخ کښونکي ليکي چي مور يې د دې لپاره چي خپل زوی د لېونتوب د ژوند له تکليفونو څخه خلاص کړي، نو د شپې يې له ستوني ونيو او مړ يې کړ.[3] ځيني وايي چي اشرفخان د خپل پلار په انتقام (د شاه محمود تره چي د هغه د مرګ نسبت شاه محمود ته کوي) هغه وخت يې شهنشاهي تاج ومانه او پر سر يې کېښود، چي د شاه محمود سر يې هغه ته راوړ. يعنې د شاه محمود د تره د زوی اشرفخان په اشاره ووژل شو.[4] او ځيني ليکي چي په طبيعي مرګ وفات شو.[5] والله اعلم بالصواب. خو د بنده په نظر بايد وروستی قول سم وي، ځکه چي په لومړي قول، يو زوی چي هرڅومره ناروغ او لېونی وي، بيا هم د مورولۍ احساسات او مهرباني به يوه مور دې ته پرې نه ږدي، چي خپل زوی پخپل لاس له مری ونيسي او مړ يې کړي او يا يې په بل ډول ووژني. په دويم قول څرنګه چي ليدل کېږي، د اشرفخان شخصيت تر دې لوړ و، چي کورني انتقام ته يې پر ملي مسأله باندي ترجيح ورکړې وای او فرضاً که داسي هم وای او يا اشرفخان کولای شول چي له اوله يې له شاه محمود سره مخالفت پيل کړی وای او له کندهاره له هغه سره لاړ نه شي او د شاه محمود په ګټه ونه جنګېږي او يا په عين پېښو کښي يې چي افغاني عسکر هم زياتره د اشرفخان پلويان او ملګري وو، په ښه شان کولای شول، چي د شاه محمود پرضد پورته شي او هغه له منځه لېري کړي. خو

(۱) د سيد جمال الدين تتمة البيان، کابل چاپ، ۹۷ مخ. د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۸۴ مخ.

(۲) تاريخ سلطاني، ۷۶ مخ. خورشيد جهان، ۱۳۵ مخ. مآثرالامراء درېيم ټوک، ۷۰۱ مخ. روضة الصفای ناصري. تتمة البيان، د افغانستان تاريخ، ميليسن، د پښتنو تاريخ.

(۳) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۸۴ مخ.

(۴) جهانکشای نادري، لاهور چاپ، ۱۱ مخ. خورشيد جهان، ۱۳۵ مخ.

(۵) تاريخ ايران، سرجان مالکم. د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۸۴ مخ.

لکه چي ليدل کېږي، اشرفخان کورنی انتقام له پيله د ملي مرام په مقابل کښي شاته وغورځاوه او تر پايه پوري يې له شاه محمود سره اوږه په اوږه د افغاني شنونو د ساتني لپاره د شاه محمود په ګټه مجادله کوله؛ نو له داسي ملي شخصيت څخه ليري بريښي، په داسي وخت کښي چي شاه محمود له کاره وتلی، ناروغ، او لېونی و او يقيناً ذ هغه وجوړېدو ته نوره هيله هم نه کېده او پخپله له منځه تلونکی و، يوازي د کورنی انتقام په نامه خان په داسي ناوړه کار بدنام کړي په تېره بيا پخپله اشرف خان د شاه محمود د ژوند په وخت کښي د شاه محمود وليعهد او جانشين ټاکل شوی و، نو نور يې د داسي کار ترسره کولو ته اړتيا نه ليده.

په هر صورت، په اصفهان کښي د شاه محمود شهنشاهي تر درېيو کلونو وروسته پايته ورسېده او د هغه د تره زوی اشرفخان هوتک د شاه محمود خايناستی (جانشين) شو.

**د شاه محمود سکې:**

په هوتکي دوره کښي شاه محمود د لومړي ځل لپاره په خپل نوم سکه وهلې ده، چي د سپينو زرو وه. د سکې پر مخ باندي په څلور کونجه چوکات کښي دننه طيبه کلمه ( لا اله الاالله محمد رسول الله ) او پر غاړو باندي يې ( ابوبکر، عمر، عثمان او علي ) ليکل شوي وو، د سکې پر شا باندي دغه بيت دی:

*سکه زد از مشرق ایران چو قرص آفتاب شاه محمود جهانگیر سیادت انتساب*

سر بېره پر دې، د دغو بيتونو نسبت هم د شاه محمود مسکوکاتو ته کوي:

فرو رود بزمین ماه و آفتاب منیر ز رشك سكهٔ محمود شاه عالمگیر

دین حق را سكه بر زر كرد از حكم الله عاقبت محمود باشد بادشاه دین پناه(۱)

---

(۱) رسالهٔ مسكوكات افغانستان در عصر اسلام: د بناغلي احمد علي خان كهزاد ليكنه، ۸ مخ.



د اصفهان فاتح شاه محمود هوتك



سلطان حسین صفوي

# پنځمه برخه

## د شاه اشرف دوره

د شاه محمود تر مړینې وروسته د ۱۱۳۷ هـ کال د برات میاشتې په دوولسمه ورځ د عبدالعزیز ( د شاه محمود تره ) زوی شاه اشرف د اردو دمنصبدارانو او د افغاني مشرانو په ټاکنه شاهي تاج پر سر کښېښود.

لکه پخوا چې ویل شوي دي، افغانان په پیل کښي یوازي د خپلي خاوري د آزادۍ او خپلواکۍ د ترلاسه کولو لپاره د صفوي دولت په مقابل کښي پورته شوي او قیام یې کړی و او له صفوي دولت څخه یې د افغاني خاوري له آزادۍ او بشپړتیا پرته بل څه نه غوښت، لکه چې شاه محمودهوتک همدغه مطلب د اصفهان د محاصرې پر وخت سلطان حسین صفوي ته د سولي په شرطونو کښي یاد کړی و، چې سلطان حسین صفوي هغه ونه مانه او په پای کښي د اصفهان د نیول کېدو سبب شو.

کله چې وار شاه اشرف ته ورسېد، نو ده هم غوښتل چې د پارس سلطنت بېرته صفوي کورنۍ ته وسپارل شي او پخپله بېرته افغانستان ته راشي. لکه چې په همدغه نسبت د تاجپوشۍ په ورځ پخوا له دې چې شاهي تاج پر خپل سر کښېږدي، د سلطان حسین صفوي په پښو کښي یې کښېښود، سلطان د هغه منلو ته حاضر او راضي نه شو، تاج یې واخیست او پخپل لاس یې د شاه اشرف پر سر باندي کښېښود او ویې ویل: "ما عزت او هوسایي په یوازي ژوند او ګوشه نشینۍ کښې موندلې ده[1] او کناره ګیري ته مې تر عزت ترجیح ورکړې ده".[2]

سید جمال الدین افغان لیکي چې په همغه مجلس کښي سلطان حسین صفوي خپله لور هم شاه اشرف ته په نکاح کړه.

---

(۱) تاریخ ایران، سرجان مالکم.

(۲) د سید جمال الدین افغان د تتمة البیان ژباړه، کابل چاپ، ۹۷ مخ.

تر هغه وروسته شاه اشرف تر ټولو لومړی د خلکو په اعتماد جلبولو کښي هڅه وکړه او ډېر کوښښ یې وکړ هغه بې اعتمادی او بې نظمی لیري کړي، چي د شاه محمود د شدت او عصبیت له کبله پیدا شوي وې او د ده د سلطنت په وروستیو وختونو کښي له ده څخه لیدل شوې وې.

له تشدد او سخت چلندی څخه یې کرکه او پر مظلومو خلکو باندي به یې رحم او مهرباني کوله او چاته چي مالي زیان رسېدلي و د هغه زیان جبران او تلافي به یې وکړه او هغو کسانو ته یې چي له افغانانو سره یې له تماس او ناستي ولاړي څخه کرکه کوله د الفت او مینې لاس اوږد کړ.

همدغه د شاه اشرف ښه نیت او له پارسیانو سره نږدېوالی دی، چي دې درجې ته ورسېد او د ځینو افغاني مشرانو او افسرانو لکه د شاه محمود د دورې مشهور جنرال امان الله خان او داسې نورو د بې اعتمادی او مخالفت لامل شو، په تېره بیا هغه وخت چي شاه اشرف د سلطان حسین صفوي زوی شهزاده طهماسب ته چي په مازندران کښي د ترکي قبیلو له مشر فتح علیخان سره اوسېده او له ډېري مودې څخه یې مرکز ته د راتګ جرأت نه درلود، د پخلا کېدو او دلاسایي یو بلنلیک ولېږه چي د دربار د ځینو چارواکو بې اعتمادي او مخالفت زیات شو.

شاه اشرف طهماسب میرزا ته پخپل بلنلیک کي ولیکل چي "د ایران د ښارونو خوا ته د دښمنانو او پردیو لاسونه اوږده شوي ، له دې کبله په خلکو کي الې ګولې پیدا شوې دي. موږ او تاسو باید سره سوله او یو د بل ملاتړ او مرسته وکړو او په ګډه د ایران له ښارونو څخه د دښمنانو لاسونه لنډ کړو".[1]

که څه هم تاریخ کښونکي لیکي چي شهزاده طهماسب غوښتل اصفهان ته د شاه اشرف د کتلو لپاره لاړ شي، خو د شاه اشرف دربار د ځینو چارواکو د فتنو له کبله چي په پټه یې له شهزاده طهماسب سره لار او اړیکي درلودل او طهماسب ته یې لیکلي وو چي د شاه اشرف پر

(۱) د تتمة البیان ژباړه، کابل چاپ، ۹۸ مخ.

قول اعتماد او باور ونه کړي، طهماسب یې له خپلې غوښتنې او میل څخه وګرځاوه.

### د امان الله خان مخالفت :

اروانباد قاضي عطاءالله خان، کله چې له شاه اشرف سره د امان الله خان مخالفت بیانوي، نو لیکي چې: "...د افغانانو له زړو عیبونو څخه یو دا دی چې: د هیوادونو د فتحه کولو، نیولو او پر دښمن باندي تر غالببدلو وروسته د دوی تر منځ اختلاف، بې اتفاقي او ګوندبازي پیدا کیږي، له همدې وجې افغانانو تل د دښمن په وړاندي ماتي خوړلې ده. تر فتحې وروسته هر افغان هڅه کوي، چې د رئیس په توګه وټاکل شي، کله چې له افغانانو څخه یو تن رئیس شو، نو نور افغانان کوښښ کوي چې هغه له پښو وغورځوي او ناکام یې کړي".[۱]

امان الله خان ( د شاه محمود دورې مشهور جنرال) هم چې له یوې خوا یې خان له شاه اشرف سره برابر باله او د قزوین په جبهه کښې دواړه د شاه محمود د قومندانانو په توګه د قزوین په نیولو مامور شوي وو او له بلې خوا یې د شاه اشرف له نرمي رویې سره موافقت نه درلود، نو له دې کبله یې له شاه اشرف سره په مخالفت لاس پوري کړ او د دې لپاره چې شاه اشرف له پښو وغورځوي، له شهزاده طهماسب سره یې پټ تګ راتګ او اړیکي پیل کړل او طهماسب یې پر اصفهان باندي حملې ته هڅاوه.

شاه اشرف چې له دې دسیسې څخه خبر شو، نو سملاسي یې امان الله خان او د ده ملګري ونیول او اعدام یې کړل او په دې توګه د هوتکي دورې له شجاعو او زړورو جنرالانو څخه یو تن د کورنې نفاق او بې اتفاقۍ قرباني شو.

### د بهرني سیاست ستونزي:

شاه اشرف په داسي وخت کښې راوړاندي شو، چې د پارس هیواد بهرني سیاست له سختو ستونزو سره مخامخ شوی و او خواکمنو ګاونډیانو لکه روس او ترک له هري خوا د پارس د خاوري

---

(۱) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک.

نیولو ته سترګي سرې کړې وې او هڅه یې کوله چې ژر تر ژره د فارس خاوره ووېشل شي.

له یوې خوا شهزاده طهماسب د تاج و تخت د ترلاسه کولو لپاره له روسي او ترکي دولتونو سره په مفاهمه او مذاکرو پیل وکړ او هغوی ته یې وعده ورکړه چې د کسپین سمندرګي د غاړې ټولي سیمي به روس ته او هغه ایالت چې د ترکانو لاسته ورغلی و، دترکو دولت ته پرېږدي، په دې شرط چې د روس او ترکو دولتونه د تاج و تخت او اصفهان په نیولو او د افغانانو په ایستلو کښي له هغه سره مرسته وکړي.[1] لکه چې اسمعیل بېګ یې د سفارت په ډول او د مرستي حاصلولو په غرض د روس حکومت ته ولېږه، چي د هغه له کبله د روس دولت یو شمېر حربي بېړیو په رشت بندر کښي لنګر واچاوه، چي وروسته بیا په دغه پلمه چې د صفوي کورنۍ د یو تن په غوښتنه د صفوي دولت د ساتني لپاره راغلي دي، د رشت حاکم یې چي مدافعې ته چمتو شوی و، مغلوبه کړ.[2]

له بلي خوا په ۱۷۲۴ م کال په اسلامبول کښي د پارس د تجزیې معاهده د فرانسې د سفیر ( مارکي دوبوتاک ) په منځګړتوب د عثماني دولت دنمایندګانو حاج مصطفی او محمد افندي او د روس د سفیر ( نیلوزوف ) تر منځ لاسلیک شوه.[3] چي په هغې کښي یې د پارس خاوري سرحدي ښارونه او ولایتونه خپل ترمنځ سره ووېشل.

په پرېکړه لیک کښي ویل شوي وو، هغه ټول ایالتونه چې د خزر سیند پر غاړه دي، د تراکمه له ښارونو څخه د کرو د نهر او رود د یو ځای کېدو تر ځایه د روسیې په دولت پوري مربوط او د دغو دواړو سیندونو د یو ځای کېدو له ځایه په مستقیم خط د اردبیل تر درې میلۍ پوري او له هغه ځایه تبریز ته او له تبریزه تر همدان او کرمانشاه پوري دغه ټول ښارونه او هغه ټول ولایتونه چې د دغه خط او عثماني سرحدو تر منځ پراته دي، عثماني دولت ته دي منسوب وي.[4]

(۱) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، ۸۵ مخ.
(۲) جهانکشای نادري، ( ۱۹۳۱ کال )، لاهور چاپ، ۱۱ او ۱۲ مخونه.
(۳) راوبط سیاسي ایران و افغانستان، احمد توکلي، ۱۷ مخ.
(۴) تاریخ ایران، سرجان مالکم.

څرنگه چې د دې معاهدې په اړه مخکې څو کربنې وویل شول، وروسته تر دې چې شهزاده طهماسب د مرستې لپاره د اسمعیل بېگ په لېږلو سره د پارس خاورې خوا ته د روس د وړاندې راتگ لپاره د روس د تزار په لاس پلمه او موقع ورکړه او د هغه لیکلې سند له وجې چې اسمعیل بېگ د صفوي دولت په وکالت د روس دولت ته سپارلی و، د روس دولت له دارالمرز ولایتونو څخه تر نیاز آباده پورې سیمې د لسو زرو عسکرو په واسطه خان ته منسوبې کړلې، رشت او کهدام یې ونیول او دوه کاله وروسته یې لاهیجان او تیم جان سیمې هم ونیولې او څه موده وروسته پخپله پتردو چې د لارې د قزلر کلا له خوا له ډېرو عسکرو سره (دربند) ته ورسېد او د هغه ځای خلک یې په اطاعت مجبور کړل، نو د بادکوبه او سالیان سیمې یې هم ونیولې.[1]

همداراز عثماني دولت د پارس خاورې د تجزیې د ترون له کبله چې له روسانو سره یې کړی و، د ارزنته الروم حاکم ابراهیم پاشا گرجستان ته او عارف احمد پاشا ایروان ته او د وان حاکم عبدالله پاشا تبریز ته او د بغداد والي حسن پاشا کرمانشهان او همدان ته مامور کړل او هر یو له ډېرو عسکرو سره د دغو ولایتونو د نیولو لپاره روان شول.

ابراهیم پاشا تفلیس ونیو او عارف احمد پاشا د ایروان کلا تر څلورو میاشتو محاصرې وروسته ونیوله او عبدالله پاشا پر تبریز بګاندې حمله وکړه، خو په لومړي کال کې یې دغه ځای ونه نیولی شو او په خوی او سلماس کښې خزه شول او په دویم کال یې دغه کلا ونیوله او د هغه ځای خلک یې عموماً له تېغه تېر کړل او د بغداد والي حسن پاشا کرمانشهان ونیو، چې پخپله هم په دغه ځای کښې وفات شو او د ده زوی احمد پاشا د عثماني دولت له خوا د همدان په نیولو مامور شو او تر درېیو میاشتو محاصرې وروسته یې دغه ځای لاسته راوړ. تر ده وروسته سارو مصطفی پاشا د ګنجه ولایت او علي پاشا د اردبیل سیمه ونیوله. وروسته بیا مغانات، زنجان، سلطانیه او کزار هم د عثماني دولت لاسته ورغلل.[2] په داسې خطرناک وخت کې شاه اشرف د پارس سلطنت واګې په لاس کې ونیولې چې

(۱) جهانکشای نادري، لاهور چاپ ۱۲مخ.
(۲) جهانکشای نادري، لاهور چاپ، ۱۳ مخ.

له یوې خوا یې باید د کورني امن تأمینولو په موخه له کورنیو مخالفو ځواکونو، په تېره بیا له شهزاده طهماسب سره مبارزه او جګړه کړې وای او له بلي خوا د بهرني سیاست او استقلال ټینګولو لپاره لازم وو چې د پارس په خاوره کښې یې د دوو لویو ځواکونو( روس او ترک ) د پرمختګ مخه نیولې وای، چې په دې توګه ګویا د شاه اشرف موقعیت د دریو ځواکمنو او مخالفوجبهو ترمنځ رانښکېل و او شاه اشرف د پارس د پاچا په توګه ځان اړ باله چې له دغو دریو واړو ځواکونو سره مجادله او مقابله وکړي.

### د شهزاده طهماسب ماتې:

شاه اشرف وغوښتل چې لومړی هغه الې ګولې او ښورښ غلې کړي، چې په آذربایجان کښې پیدا شوی و او هم د اصفهان خوا ته د شهزاده طهماسب د مخکښې راتګ مخه ونیسي، نو په ډېره بیړه د تهران خوا ته روان شو.

شهزاده طهماسپ له اندرمان کلي څخه چې د تهران په خوا کښې پروت و، د سلمان آباد په حدودو کښې د افغانانو مقابلې ته راووت. تر لنډې جګړې وروسته دطهماسب لښکرماتې وخوړه او په تېښته لاړ.

وروسته تر دې چې طهماسب مازندران او استرآباد ته وتښتېد شاه اشرف یو ټولګی عسکر د تهران محاصرې ته مامور کړل او خپل مشهور جنرال سیدال خان ناصر یې د قزوین په نیولو مامور کړ، په خپله بېرته اصفهان ته لاړ.

د قزوین خلک سیدال خان ناصر ته تابع شول، خو شهزاده طهماسب له مازندران او استرآباد څخه، فتح علیخان قاجار له ترکمانیه او قاجاریه وو له یوې ډلې خلکو سره د تهران مېشتو افغانانو د مقابلې لپاره ولېږل، خو فتح علیخان هم د تهران په ابراهیم آباد کښې د افغانانو له لاسه ماتې وخوړه او تهران ښار په بشپړ ډول د افغانانو لاسته ورغی او په هغه پسې د ساوه او قم خلکو هم د شاه اشرف متابعت ومانه او خپل ښارونه یې افغانانو ته وسپارل.[۱]

### د ترکانو ماتې:

که څه هم شاه اشرف د پارس د تجزیې په هلکه د روس د تزار

(۱) جهانکشای نادري، لاهور چاپ، ۱۳ او ۱۴ مخونه.

او ترکو له معاهدې څخه خبر و او هم یې د پارس په سرحدي ولایتونو کښې د ترکانو پرمختګ او تېري لیدل، خو له دې سره سره یې بیا هم اراده نه درلوده چې د ترکو له مسلمان ملت سره وجنګېږي، بلکې غوښتل یې چې ستونزې د دوستانه مفاهمې او روغې جوړې له لارې حل و فصل کړي.

نو په دې توګه یې د قسطنطنیې عثماني دربار ته یو سفیر ولېږه چې د شاه اشرف ښه نیت د ترکانو پاچا ته ورسوي او هغوی د پارس پر خاوره له تېري او یرغل څخه منع کړي، د شاه اشرف سفیر لومړی له عثماني عالمانو سره مجلسونه او خبرې وکړې او هغوی ته یې دا جوته کړه چې له سلطان سره دا ښه نه ښکاري او نه ښایي چې د مسلمان حکومت د غورځولو او بربادولو لپاره له نصراني پاچا سره اتحاد او اتفاق وکړي. عالمانو د شاه اشرف له سفیر سره موافقت وکړ او ویې ویل چې دغه کار له شریعت څخه مخالف دی، خو وزیرانو د عالمانو پر خلا ف احتجاج وکړ او ویې ویل: "عثماني سلطان امیرالمومنین او د رب العلمین د رسولﷺ خلیفه او پر ځمکه باندې د خدایﷻ پاک سیوری دی. هغه څوک چې د ده د اوامرو تابع نه وي او د ده په نوم خطبه ونه وایي او مالیه ورنه کړي، نو هغه د دین دښمن بلل کېږي او له نصارې سره ترجهاده له هغه سره جهاد بهتر دی"[1] خرنګه چې عثماني سلطان هم د وزیرانو په پلوي و، نو عثماني عالمان مجبور شول او د شاه اشرف سفیر بېرته ناکامه لاړ او وروسته تر هغه (د شاه اشرف د جلوس په درېیم کال) د بغداد والي احمدپاشا د مامان د خانګ پاشا او د همدان د حاکم عبدالرحمن پاشا، د دیالمستان د مصطفی پاشا د موصل د حاکم په ملګرتیا له عثماني دربار څخه د اصفهان او د افغانانو د نورو نیول شویو ولایتونو په نیولو مامور شول او د (شپېتو زرو ترکي عسکرو) او له (اویاوو توپونو) سره د اصفهان خوا ته روان شول. شاه اشرف په هغه وخت کښې هم د جنګ د مخنیوي په موخه او هم د پارس د خلکو له حقوقو د دفاع لپاره بیا د عثماني عسکرو قومندان ته یو پیغام ولېږه، چې مضمون یې داسې و:

"موږ دواړه دوستان یو او په کار نه ده چې یو له بل سره وجنګېږو.

(۱) د تتمة البیان د ژباړې نقل، کابل چاپ، ۹۸ مخ.

زه تاسو په رسميت پېژنم، په دې شرط چې لومړی هر کال د مکې مکرمې په لار کښې اميرالحاج د ايران پاچا له خوا، له ايرانيانو څخه وټاکل شي. دويم دا چې د کعبې له خوني څخه دې يو رکن په جعفري ( شيعه وو ) فرقې پورې ځانګړی کړل شي، دريم دا چې ايرانيان دې په عثماني خاوره کښې محترم او په امن کښې وي."[1]

خو، څرنګه چې د ترکي عسکرو قومندان د بې شرطه تسليم غوښتنه کوله او هم له عثماني دربار څخه يوازې په جګړه او د پارس د ښارونو په نيولو مامور شوی و، نو د شاه اشرف وړانديز يې ونه مانه. کله چې شاه اشرف وليدل عثماني دربار په هيڅ ډول دوستانه مفاهمې او مذاکرې ته حاضر نه دی او تصميم يې نيولی دی چې افغانان د برچې، توپ او ټوپکو په زور مغلوب او مات کړي، نو ده هم له مدافعې پرته بله چاره ونه ليدله، نو په ډېره چټکۍ يې د عسکرو په راټولولو او تنظيمولو پيل وکړ، د بغداد والي له خپل لوی لښکر سره همدان ته ورسېد، وروسته تر دې چې يې يو ټولګی عسکر د ديزآباد او د کردفراهان ښار د نيولو لپاره مامور کړل، شاه اشرف ته يې يو پيغام ولېږه، چې سملاسي له ټولو افغانانو سره د پارس له خاورې ووزي او سلطان حسين صفوي چې په ( تبرک ) کلا کښې د افغان دولت تر څارنې لاندې اوسېده، ترکانو ته وسپاري.[2]

شاه اشرف چې د ترکي قومندان له دې حاکمانه پيغام څخه په قار شوی و، له اصفهان څخه ګلپايګان ته لاړ او د سلطان حسين سر يې پرې کړ او د ترکانو د ايلچي په لاس يې د ترکي عسکرو قومندان ته ولېږه.[3] او خواب يې ورکړ چې رښتينی مالک الملک حق سبحانه جل وعلی شانه دی، د ځمکې او آسمانونو ميراث خاص د ده دی،

(۱) روابط سياسي ايران و افغانستان، ۱۶ مخ. د عين الوقايع د متن په حواله.
(۲) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۸۶ مخ. خورشيد جهان، ۱۳۵ مخ. جهانکشای نادري، ۱۴ مخ.
(۳) د سلطان حسين سر پرې کول د جهانکشاي نادري له ليکوال او خورشيد جهان پرته چې د جهانکشای نادري د عبارتونو نقلوونکی دی، نور تاريخ کښونکي لکه سرجان مالکم، ميليسن، سرپرسي سايکس، سيد جمال الدين افغان، قاضي عطاء الله خان او داسي نور... يې نه يادوي.

او خدای تعالی له پیله په دې صادقې مقولې او مضمون ( الملک لمن غلب ) د نړۍ د هېوادو مجازي ملکیت په خپلې تېرې تورې پوري منحصر کړی او د چا چې تورې او برچې تېرې او مټ ځواکمن دی، هغه یې د هېوادونو والي ګرځولی دی، زما او ستا تر منځ د دې معاملې پرېکړه په توري او برچې پوري تړلې ده. مالک الملک چې هر چاته غلبه ورکړه، د هېواد والي به هماغه وي.[1]

د شاه اشرف له دې سخت ځواب څخه د ترکانو قومندان ډېر زيات په غوسه شو او د جنګ اعلان يې وکړ او له همدان څخه يې له يو ستر لښکر سره د اصفهان خوا ته چپاو وروړ.

.شاه اشرف هم له افغاني عسکرو سره چې د ترکي عسکرو نيمايي هم نه کېدل، له څلوېښتو زنبورکو توپونو سره له اصفهان څخه د مدافعې په تکل ووت.

د محمد مهدي په قول په کرد ښار کې، د قاضي عطاءالله خان په قول په ( کيمره ) نومي خای کې چې د اصفهان او يزدجزد ترمنځ پروت و او د سيد جمال الدين افغان په قول د اصفهان په پنځلس فرسخۍ کې د افغان او ترکو د ځواکونو ترمنځ لومړنۍ جګړه پېښه شوه او تر سختې جګړې وروسته ترکانو په داسې حال کې چې دوولس زره تنه تلفات يې ورکړل او پنځوس توپونه يې له نورو پوځي سامانونو او وسلو سره په ډګر کې پرېښودل، سخته او فاحشه ماتې وخوړله او فتحه د افغانانو په برخه شوه، احمدپاشا کرمان ته او له هغه ځايه له دې وېرې چې افغانان يې تعقيب نه کړي بغداد ته وتښتېد.

شاه اشرف چې له پيله يې له ترکانو سره د جګړې اراده نه درلوده او يوازې يې غوښتل چې د دوستانه خبرو له لارې د پارس په خاوره کې د ترکانو د پرمختګ او تېري مخه ونيسي. په دې سبب يې تر فتحې وروسته نه يوازې عثماني بنديان خوشي کړل، بلکې د هغه سامان په هکله يې هم چې د ترکو له عسکرو څخه د جګړې پر ډګر پاتې شوي او د افغانانولاسته ورغلي وو، احمدپاشا ته ليک وليږه اوپه هغه کې

---

(۱) خورشيد جهان، د ۱۳۵ مخ نقل.

یې ورته ویلي وو چي: زه نه غواړم د مسلمانانو مللونه واخلم: تاسو له خپلې خوا یو امانتکاره سړی وټاکئ، چي له پوځي حالاتو پرته ستاسو سامان ېږته در وسپارم.(۱)

او هم یې بیا د ترکانو په نسبت د افغانانو ښه نیت ورته لیکلی و چي: "زما ښتینی هیله دا ده چي له تاسو سره د سولې او دوستۍ په فضا کښي ژوند وکړم".(۲)

شاه اشرف د ترکانو جنګي بندیان او د عسکرو نور سامان ېږته ترکانو ته ورکړل او یو ځل بیا یې د ترکانو په وړاندي شریفانه چلند او لوړ همت وښوده، چي په پای کښي د ۱۷۲۷ م کال د اکتوبر په ۱۳ مه نېټه د شاه اشرف او احمدپاشا ترمنځ په همدان کي د سولې تړون لاسلیک شو، چي په هغه کي د کردستان، لورستان، خوزستان، تورلیس، سلطانیه، قزار، زنجان، اردبیل، او خلخال په عثماني دولت پوري مربوط شول او د ختیزي خوا ولایتونه او دارالمرز په افغاني دولت پوري اړوند شول.

دغه رنګه په دې تړون کښي شاه اشرف، د روم د سلطان خلافت ومانه، چي په خطبو کښي لومړی د روم د سلطان نوم واخیستل شي. په مقابل کښي یې عثماني دولت دشاه اشرف سلطنت په رسمیت وپېژانده او ویې منله چي په خطبو کښي د سلطان تر نوم وروسته د شاه اشرف نوم هم یاد شي او شاه اشرف کولای شي چي پخپل نوم سکه ووهي.

د دې تړون په یوه ماده کښي دا خبره تثبیت شوې وه، چي عثماني سلطان به یو تن امیر الحاج د مکې مکرمې د زیارت په غرض د پارس مسلمانانو د لاربښودني لپاره وټاکي او دغه کاروان به د بغداد له لاري تېر شي، ښله دې چي د ښار حاکم ورباندي تعرض اوغرض ولري.

د تړون وروستۍ ماده دا وه چي دواړه خواوي به یو د بل په دربار کښي په دایمي ډول سفیران ولري(۳).

(۱) د تتمة البیان د ژباړې ۹۹ مخ نقل.
(۲) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، ۸۶ مخ.
(۳) روابط سیاسي ایران و افغانستان، احمدتوکلي.

ځرنګه چي د شاه اشرف د واکمنۍ په ځلورم کال کښي راشدپاشا د عثماني دربار د سفير په توګه د شاه اشرف دربار ته او محمدخان بلوڅ د شاه اشرف د استازي په توګه د روم دربار ته معرفي او ولېږل شول.[1]

***له روس سره تړون :***

پخوا مو وويل چي د روس تزار حکومت د خزر سيند د غاړې زياتره ولايتونه له مازندران او استرآباد پرته د طهماسب په اشاره چي د روس له تزار څخه يې دافغانانو په مقابل کښي مرسته غوښتې وه او د شهزاده طهماسب د خصوصي نماينده اسمعيل بېګ د ليکلي سند له کبله له صفوي کورنۍ سره د مرستي په پلمه نيولي وو، له دې کبله کله چي شهزاده طهماسب د افغانانو له لاسه ماتي وخوړله، نو شاه اشرف د ترکو پر جګړې سربېره د روس له لوی ځواک سره هم مخامخ شو.

خو ځرنګه چي شاه اشرف نه شول کولای، هغه ولايتونه چي تزار روس د شهزاده طهماسب په شفاهي غوښتنه او د شهزاده طهماسب د سفير اسمعيل بېګ د ليکلي سند له مخي پخپله قبضه کښي نيولي، بېرته ونيسي، نو يوازي يې د پارس په خاوره کښي د روسانو د نور پرمختګ په مخنيوي لاس پوري کړ او تر هغې لندې جګړې وروسته چي د آذربايجاني ليکوال( زنيل اغلو جهانګير ) په قول د روس د ځواکونو په مغلوبيت تمامه شوه، د ۱۷۲۹ م کال د فروري په ۱۳ مه نېټه د فرانسې دولت په منځګړتوب د شاه اشرف او روسيې د تزار دويم پتر ترمنځ په( ۱۷۲۷ – ۱۷۳۰ م کال) کښي يو تړون لاسليک شو.[2] چي د هغه له کبله شاه اشرف هغه ولايتونه چي روسي ځواکونو د شهزاده طهماسب په زمانه کښي نيولي وو، د روسيې دولت ته پرېښودل او په مقابل کښي تزار روس د شاه اشرف سلطنت په رسميت وپېژانده او په دې توګه شاه اشرف د روسيې له دولت سره هم د پارس خاورې سرحدي برخليک وټاکه.

***د نادر قليخان خراساني منځته راتګ :***

په همدغو وختونو کښي چي شاه اشرف له عثماني او روسي دولتونو سره سياسي سرحدونه وټاکل او تصميم يې ونيو چي بيا د کورنيو

---

(۱) روابط سياسي ايران و افغانستان، احمد توکلي.

(۲) جهانکشای نادري. ۲۰ مخ

چارو په تنظیم او ترتیب لاس پوري کړي، نو پر خراسان یې د نادرقلیخان د حملې خبر واورېد.

طهماسب قلي تر خپل نیکه ( نادر قلي بېګ ) چې وروسته په (نادر افشار) مشهوره شو، د ( ۱۱۰۰ هجري کال د امامانو میاشتي په ۲۸ مه د شنبې په ورځ ) د خراسان په دستجرد نومي کلا کښي وزېږېد.

پلار یې ( امامقلي ) نومېده او شپونتوب یې کاوه.[1] یا په بل روایت څرمنان یې ګنډل.[2] نادرقلیخان هم پخوا له دې چې ځوانۍ ته ورسېږي، د خپل پلار رمې یې څرولې، خو د ځوانۍ په پیل کښي یې غلا ګاني کولې او لاري به یې وهلې، چې له دې لارې یې په ډېر زیات زړورتوب او بهادرۍ کي شهرت وموند، یو څه موده له خپل تره ( د کلات ایالات حاکم ) سره نوکر و، چې د خپلو بدو او ناوړه کارونو له کبله وشړل شو، بیا یې په لوټونو او لاره وهلو پیل وکړ.

هغه مهال چې د هغوی کورنۍ سلطنت د شاه محمود افغان په لاس پاشل کېده، نادرقلیخان څلورویشت کلن و او په همغه زمانه کي یې د افشارو ریس ابیورد (بابا علي بېګ) لور په نکاح کړې وه، دغه کار (وصلت) له نادرقلیخان سره د افشار طایفې د ملاتړ او د هغه د ډېر خواکمنېدو او شهرت لامل شو.

شهزاده طهماسب د سلطان حسین صفوي زوی چې د صفوي کورنۍ د تخت و تاج مدعي و، خو د زړورو عسکرو د نه لرلو په وجه به یې په هر ډګر کښي د افغانانو له خوا ماتي خوړله. کله چې د نادرقلیخان له زړورتوب او شجاعت څخه خبر شو، د ده د تره په واسطه چې د کلات حاکم و هغه ته پیغام ولېږه، چې له خپلو ملګرو سره د شهزاده په لښکر کښي شامل شي، نادرقلي چې د ډېرو ګناهونو او جرمونو له کبله نه شول کولای شهزاده ته نژدې شي، نو په خواب کښي یې وویل: "که چیري شهزاده زما له پخوانیو او تېرو ګناهونو څخه تېر شي، نو زه به یې

(۱) د پښتنو تاریخ، لومړی توك، ۷۸ مخ.
(۲) تواریخ ایماق ومغل، ۶۰۲ مخ.

ملازمت ومنم" [۱]

شهزاده طهماسب چي له افغانانو سره د مقابلې لپاره هغه تــه ډېره اړتیا درلوده، نو سملاسي یې نادرقلیخان ته د معافۍ او بښني لیک د هغـه د تره ( د کلات حاکم ) په واسطه ولېږه.

نادرقلي چي تر هغه وخته پوري په غرونو او دښتو کـښي ګرځېده، د معافۍ لیک تر وررسېدو وروسته کلات ته ورغی، کلــه چــي ورسېد، نــو د خپل تره پر کلا یـې قبضه وکړه او حاکم شو.

شهزاده طهماسب هغـه بـاغي وبالـه او د ده د مـاتولو لپـاره یـــې تیاری ونیو، خو کله چــي د نادرقلیخــان مــټ دومـره قــوي شــوی و، چــي شــهزاده یــې نــور د ټکولــو او مـاتولو تـوان نـه درلـود، لکـه چـي پخپلـه نادرقلیخان له خپلو ملګرو او همکارانو سره د شهزاده دربار ته لاړ او پـه زور سره یـې له هغه ځخــه د واکمنـۍ پـراخ واکونـه واخیسـتل او خان یـــې د شهزاده د ټولو نظامي ځواکونو سپه سالار اعلان کړ. [۲]

په ۱۷۲۷ – ۱۷۲٦ م کلونو کښي نادرقلیخان د شهزاده طهماسب د سپه سالار په توګه پر خراسان، چي د ملک محمود سیستاني په ولکـه کـښي و، حمله وکړه او د خراسان ولایتونو زیاته برخه یـې د ملک محمود له لاسـه وایستله او وروسته تر دې چي یـې ملــک محمـود د خبوشـان حـاکم ملـک اسحق او د هغه نور ورونه اوهمکاران لـــه منځه یـووړل، د خراسـان پـاتي ولایتونه یـې هم ونیول او تر هغه وروسته یـې د هرات د ابدالیـانو خـوا تـه مخه کړه او تر دووکلونو ډېره موده د نـادري ځواکونـو او ابدالیانو ترمنـځ سختي جګړې وشوې او د هـرات ابدالیـانو پـه خپـل ټول ځواک د قـوم د آزادۍ او د خپلي خاورې دخپلواکۍ ساتلو لپاره د نادرقلیخان سختوحملو پـه مقابل کښي د فاع وکړه او په مېړانه وجنګېدل [۳].

(۱) تواریخ ایماق و مغل، ۶۰۲ مخ. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۸۸ مخ.

(۲) د پښتنو تاریخ، لومړی ټوک، ۸۸ مخ.

(۳) څرنګه چي د نادر په وړاندي د ابدالیانو د ملي جګړو تفصیلات د افغانستان په عمومي تاریخ کښي ( د ابدالیانو د دورې ) په نامه بېل فصل جوړوي، نو ځکه یې له لیکلو ډډه وشوه. ( لیکوال)

تر دې وخته پوري لا د هرات د ابدالیانو د ځاي قوه پایته نه وه رسېدلې، چي شاه اشرف هوتکي د نادرقلیخان خطر ته متوجه شو او د دفاعي تدارکاتو برابرولو په سوچ کښي شو.

خو څرنګه چي له یوې خوا د خراسان او سیستان له لاري له کندهار سره د شاه اشرف اړیکي غوڅ شوي وو او له کندهاره د هیڅ ډول ملاتړ او تقویې هیله نه کېده او له بلي خوا یې هغه زیات افغاني ځوانان چي د زړه له اخلاصه ورسره ملګري او همکار وو، په عثماني او د پارس په کورنیو جنګونو کښي له لاسه ورکړې وو. نو یې ونه شول کړای چي د نادرقلیخان د عسکرو په وړاندي هغسي دفاعي ترتیبات ونیسي، چي د عثمانیانو په وړاندي یې نیولې وو.

څکه د عثمانیانو په مقابل کي په جنګ کښي د شاه اشرف زیاتره سرتېري افغانان وو او افغانانو سربېره پردې چي د خپل پاچا ( اشرف ) امر ته د زړه له کومي چمتو وو، روحاً یې هم د افغاني نوم او ننګ له ساتني سره لېوالتیا او مینه درلوده. خو شاه اشرف د نادرقلیخان په وړاندي له یوې خوا له کندهاره د مرستي نه رسېدلو او له بلي خوا د عسکرو د کموالي له کبله اړ و، چي د هغه ځای له غیر افغاني قبایلو او طایفو څخه د خپل لښکر زیاته برخه برابره کړي، که څه هم په ظاهره د شاه اشرف په امر د جنګ ډګر ته تلل، خو روحاً او په زړه کښي یې د افغانانو له فتحې سره علاقه او دلچسپي نه درلوده، بلکي په لازمو وختو کښي به یې د افغانانو د ماتي خوړلو سببونو له برابرولو څخه هم ډډه نه کوله، په دې توګه شاه اشرف نژدې له یودېرش زره کسیز لښکر سره چي نیمایي هم افغانان نه وو، د نادرقلیخان په مقابله او دفاع پیل وکړ.

***د مهماندوست جګړه: ( یا د شاه اشرف او نادرقلیخان لومړنۍ جګړه ) :***

په ۱۱۴۲ هـ کال کي هغه وخت چي نادرقلیخان د هرات د ابدالیانو له جګړې څخه بېرته مشهد ته تللی و، شاه اشرف د امامانو (محرم) میاشتي په ۱۳ مه نېټه د دوشنبې په ورځ له خپل لښکر سره له اصفهان څخه د خراسان خوا ته لاړ.[1]

(۱) جهانکشای نادري، ۷۳ مخ.

نادرقلیخان هم توپخانه له مشهد څخه د سلطان میدان په لاره ولېږله او خپله د شهزاده طهماسب په ملګرتیا د هغه کال د صفرؑمیاشتي په ۱۸ مه د نیشاپور او سبز وار له لاري روان شو.

شاه اشرف چي سمنان ته ورسېد، لومړی یې د سمنان قاضي میرسیدعلي کلا ونیوله او پخپله قاضي یې بندي کړ، تر هغه وروسته یې د سمنان په محاصره کولو لاس پوري کړ.

نادرقلیخان له خپل راتګه د سمنان خلکو ته ډاډ ورکړ او له سبز وار څخه د یلغار له لاري مخکښي لاړ.

شاه اشرف چي له نادري څواکمني توپخانې څخه خبر شو چي د عبدالله خان ناصري هراتي په قول د لسو تنو فرانسوي منصبدارانو تر قومندې لاندي اداره کېدله.[1] سملاسي یې سیدال خان ناصر چي د شاه اشرف مشهور جنرال او د افغاني لښکر مقدمة الجیش و، د توپخانې په دفاع مامور کړ او سیدال خان هم د بسطام خوا ته لاړ او پر نادري توپخانه یې چي دبسطام په مربوطاتو په مهروشن کلا کښي وه، د شپې حمله وکړه، مرګ و ژوبله ډېره زیاته شوه، خو څرنګه چي توپخانه ډېره قوي وه او له بلي خوا نادري پلي او سپاره څواکونه هم د بسطام بند په بنار کښي توپخانې ته نژدې پراته وو، افغانانو کوم کار ونه کړای شو او سهار نژدې و چي بېرته د شاه اشرف د عسکرو خوا ته راغلل.

بله ورځ نادرقلیخان له لښکر او توپخانې سره په داسي وخت کښي مومن آباد ته ورسېد، چي سیدال خان هغه ځای خوشي کړی او د مهماندوست خوا ته تللی و، په هماغه ورځ شاه اشرف هم مهماندوست ته ورسېد.

د هغې ورځي په سبا د ۱۱۴۲ هـ کال د لومړۍ خور ( ربیع الاول ) په شپږمه د شنبې په ورځ دواړه خواوي د جنګ په ډګر کښي یو د بل په وړاندي حاضر شول.

افغانانو له دریو خواوو په ایستلو تورو پر نادري عسکرو حمله وکړه او دانګرېزي تاریخ کښونکي فیریر په وینا افغانانو داسي شجاعت او چالاکي

(۱) د پښتنو تاریخ، اول ټوک، ۹۰ مخ.

ښکاره کړه، چي نادرقليخـان او د ده عسکر يـې په حيرانـۍ او تعجب کښي واچول.(۱)

خو څرنګه چي نادري عسکر له هري خوا په درنو توپونو احاطه شوي وو، افغانانو چي له هري خوا ورباندي حمله وکړه، د توپونو له سختو ډزو سره مخامخ شول او پخوا له دې چي لـه نـادري پياده عسکرو سره مخامخ شي، زيات شمېر کسان يې د توپونو په ګوليـو لـه منځه لاړل. لکه چي شېرمحمد ليکي: " ... د افغانانو توري او برچـې پـه هيـڅ ډول د اور غورځوونکو توپونو د ډزو له کبله دښمن ته نه رسېدلې" (۲) سره له دې يـې هم پر نادري توپخانه باندي څو سختي حملې وکړې، خو څـرنګه چـي د توپونو د ډزو په وړاندي يې د دفاع هيڅ وسيله نه درلوده، نـو وروسته تـر دې چي يې دوولس زره تنه تلفات ورکړل، شا تګ ته اړ شول.

د خورشيد جهان ليکوال د مهماندوست د جنګ د ډګر وضعيـت داسي بيان او تمثيلـوي: "...نوميـاليو افغـاني ځوانـانو چـي تـل يـې پـه جنـګونو کښي چالاکي ښکاره کړې وه او د دښمن په وړاندي د خپل مـټ د زور او مېړانـي ښودلو لپاره تيار وو، مخـامخ يـې وربـاندي بريـد وکـړ او څنګه چي د نادر پوځونو توپونه ورسېدل، نـو نـادري تـوپ ويشـتونکو پـر هغوي باندي د توپونو د ګوليو باران جوړ کړ افغاني بهادرانو او له دې سره سره د سمندر په شان په اورغورځوونکو توپونـو څه پـروا و نـه کـړه او ځانونه يـې د اور دغه درياب ته وغورځول، تباه کوونکو ګوليو هغه له خانـه تېر او زړور زمري د څو تنو زنبورکچيانو او زنبورک له اوښانو سره چي په يـو خط د توپونو ليکي ته روان وو، له منځه يووړل او نور پاتي کسان يـې هم د توپونو د ډزو په زور تر شا کړل، افغانانو د دې حال له ليدلـو څخـه ډېر پـه غوسه شول او لوګي ورڅخه جګ شول او د زمرو په شان يـې له هري خوا چپاوونه وروړل او په حملو يـې لاس پوري کړ.

خو له هري خوا نه يـې چي پر نادري پوځ باندي حملې وکـړي ځانونه يـې د اور په سمندر کښي وموندل.(۳)

(۱) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوک، ۹۰ مخ.
(۲) (۳) خورشيد جهان، ۱۴۳ مخ.

نادرقلیخان چې د افغانانو شاتګ وکوت، خپلو توپونو او عسکرو ته یې د سختې حملې امر وکړ، چې د هغه له کبله شاه اشرف وروسته تر دې چې د شېرمحمد په قول "... زمري بهادران او له تر سر تېر ځوانان یې د دښمن د توپ په خوله کښې ورکړل او د هغه خوراک یې کړل". په ماتې خوړلو مجبوره شو او د اصفهان پر لاره د دامغان خوا ته لاړ.

نادرقلیخان دغه فتحه د توپونو د ګولیو اورولو له کبله بللـه، نه د پلې نظام. له دې کبله دافغانانو له څارنې نه تېر شو او دامغان ته لاړ چې له هغه ځایه د اصفهان نیولو لپاره پوره ترتیبات ونیسي.

## له نادرقلي سره د اسلامخان افغان جګړه:

کله چې شاه اشرف درامین ته لاړ، د تهران حاکم اسلامخان د نادري توپخانې د لارې بندولو لپاره له پنځو زرو تنو افغانانو سره د ډېرو نادري عسکرو د مقابلې لپاره چمتو شو او د خار په سردره کښې یې چې د دوو غرونو ترمنځ پرته او تنګه لار وه، مورچې ونیولې.

نادرقلیخان چې د لارې له بندېدو څخه خبر شو، نو درې ته نژدې له آسه کښته شو او پلې وسلوال یې د مقدمة الجیش غره ختیځې او لویدیځې خوا ته ولېږل او توپخانه او زنبورکان یې د درې په منځ کښې روان شول. د درې په منځ کښې جګړه ونښته، نادري وسلوالو د مقدمة الجیش د غره له سر نه او نادري توپخانې د درې او د غره له بېخه افغانان د ټوپکو او توپونو د ګولیو تر باران لاندې ونیول او وروسته تر دې چې یې یوه زیاته برخه افغاني بهادران له منځه یووړل، د افغاني ځواکونو دفاعي ځواک مات او کمزوری شو او هغه څه چې ژوندي پاتې شول په درامین کښې شاه اشرف ته لاړل.

څرنګه چې شاه اشرف په درامین کښې هم په ځان کښې دفاعي ځواک او طاقت نه لیده، نو اصفهان ته لاړ چې له هغه ځایه په دفاعي تدارکاتو پیل وکړي او ترتیبات ونیسي.

په هغو وختونو کې شاه اشرف د قزوین حکومت سیدال خان ناصر ته سپارلی و او د سیدال خان کورنۍ له څینو افغانانو سره په قزوین کې وه، سیدال خان وغوښتل قزوین ته لاړ شي. خو حسین قلیخان او آغورلوخان چې د نادرقلیخان له خوا د قزوین په نیولو مامور شوي وو، د سیدال خان لاره بنده کړه او سیدال خان مجبوره

شو چي ځان ببرته د شاه اشرف عسكرو ته ورسوي.

كله چي شاه اشرف اصفهان ته ورسېد، د دفاعي ځواک په برابرولو او ځواكمنولو يې لاس پوري كړ، لومړی يې خپل زيات شمېر مخالفين له منځه ليري كړل او تر هغه وروسته يې ټولو نظامي ځواكونو ته لـه اصفهان ښار څخه دباندي د ښار شمالي خوا ته په ( مـورچـه خـورت ) نومـي ځای كښي د ځنډېدو امر وكړ، چي له ښاره دبـاندي د نـادري ځواكونـو پرضـد دفاع وكړي او لكه محمـد مـهدي چـي ليكـي: د شاه اشـرف يـوه برخـه ځواكونه د څو تنو تركي پوځيانو تر څارني لاندي وو، چي د تركو د دولت له خوا د افغانانو د مرستي لپاره رالېږل شوي وو.[1]

## د مورچه خورت جګړه[2]:

نادرقليخان د اسلامخان تر مـاتي وروسته شـهزاده طهماسـب پـه تهران كښي پرېښود او پخپله د باغ نظر له لاري اصفهان تـه روان شـو او پـه هـرځای بـه د افغـاني او نـادري قراولانـو تـر منـځ مقابلـه او وژني كېدلې.

د كاشان په شا و خوا كښي اسلامخان بيا له خپلو لږو عسكرو سره د نادري ستر لښكر لاره ونيوله او په جګړه يې لاس پوري كړ، خـو كـوم كـار يې و نه كړای شو او بيا يې ماتي وخوړه.

كله چي نادري عسكر د مـورچـه خـورت پـه دوه فرسخی كـښي ميران باغ ته ورسېدل، نو افغانان هم مقابلې تـه پورتـه شـول او تـر مـاښام پوري له افغانانو څخه څلور سوه تنه او له مقابل لوري زيـات شـمېر عسـكر ووژل شول، هغه وخت يو ټولګي تركي عسكر هم د افغانانو د مرستي لپـاره ورسېدل، خو څـرنـګه چي د شپې تياره شوه دواړه خواوي خپلو لښكرځايو تـه لاړې. پـه دې جنـګ كـښي د مهماندوسـت جـګړې پرخـلاف نـادري توپخانه د مقدمة الجيش په ډول وه او پلی نظـام پـه هغـې پسـي موقعيـت

---

(۱) جهانكشای نادري، ۷۸ مخ. خورشيد جهان، ۱۴۴ مخ.

(۲) مورچه خورت: ځينو تاريخ كښونكو مـورچـه خـوار او ځينو نورو مـورچـه خورك هم ليكلی دی. خو كله د جهانكشـای نـادري ليكـوال چي د دغـو پېښو د زمـانې سړی و، نو دغه ځای يې د مورچه خورت په بڼه ليكلی دی.

درلود، چي ځينو تاريخ کښونکو دغه ترتيب يوه پوځي مکاري او جګړه ييز چل بللی دی.

د هغي ورځي په سبا د دويمي خور ( ربيع الثاني ) په شلمه د سهار تر رڼا دمخه نادرقليخان د هغه غره د لوړې ترشا چي په لمن کښي يې افغانان پراته وو، پر افغانانو حمله وکړه او اتفاقاً په دغه وخت کښي سخت باد او توپان هم پيدا شو، چي دهغه له کبله افغانان د نادري عسکرو له ورتګ څخه بې خبره پاتې شوي وو. د دې حملې له کبله د نادرقليخان او شاه اشرف د ځواکونو ترمنځ سخت جنګ ونښت، چي د محمد مهدي په وينا:

چو دريای خون شد همه دشت و راغ جهان چون شب و آسمان چون چراغ
ز آواز اسپان و گرد سپاه نه خورشيد پيدا نه تابنده ماه[۱]

او د شېرمحمد په وينا: "د قتل و قتال هنګامه داسي توده شوه چي له مړو څخه غونډۍ جوړي شوې او په دې ډګر کښي د سړيو سرونه د غونډارو په څېر توييدل او داسي جګړه وشوه، چي د هغه په ملاحظه مريخ خپله چالاکي او جلادت له لاسه ورکړ."[۲]

شاه اشرف له نادر سره مخامخ په جګړه بوخت و او سيدال خان ناصر د هغه تر شا له يو ټولګي عسکرو سره پر نادري لښکر حمله وکړه او ډېر نادري ځوانان يې له تېغه وايستل، خو څرنګه چي د افغانانو شمېر د نادري عسکرو نيمايي ته هم نه رسېده، د افغانانو شجاعت او زړورتيا چي ټول تاريخ کښونکي ورباندي قايل دي، ګټوره تمامه نه شوه او فتحه د نادرقلي خان په برخه شوه.

څلور زره افغانان ووژل شول او شاه اشرف اصفهان ته لاړ، نادرقليخان د افغانانو سامان، کالي او خېمې وسوځولې او د ځښوی په خارنه يې پيل وکړ.

### د اصفهان تخليه کول:

شاه اشرف چي اصفهان ته ورسېد، نو څرنګه چي يې له هيڅ خوا

---

(۱) جهانکشای نادري، ۸۰ مخ.
(۲) خورشيد جهان، ۱۴۵ مخ.

د ملاتړ، مرستي او خواکمنېدو امید نه و، نو دا یې غوره وګڼله چې اصفهان خوشي او تخلیه کړي او خپله دفاعي قوه شیراز ته ولېږدوي، نو له دې کبله له دوولسو زرو سپرو سره په شپه کي شیراز ته روان شو.

سبا ته چې د ښار د شا و خوا کلیو خلګ خبر شول، پر ښار یې چپاو وروړ او د افغانانو استوګنځي یې لوټ او تالا کړل او نادرقلیخان یې د ښار له تخلیه کېدو خبر کړ. نادرقلیخان درې ورځي وروسته د ۱۱۴۳ هجري کال د دویمي خور (ربیع الثاني) په ۲۳ مه نېټه اصفهان ښار ته ورسېد او امر یې وکړ چې هر چیرته افغان مومئ هغه وژنئ، څرنګه چې یو زیات شمېر پاتي افغانان یې د سپین ږیرو، ښځو او کوچنیانو په ګډون ډلي- ډلي اصفهانیانو ته وسپارل او اصفهانیانو چې د محمدمهدي په وینا له افغاني مړي څخه په تښتېدل، هغه یې په تورو، پیش قبضو او تبرونو ووژل او د هغوی مالونه یې لوټ کړل.[1]

په دې توګه نادرقلیخان حکم وکړ، چې د شاه محمود د قبر ودانۍ دي ورانه شي او د ښار غوجله ورځخه جوړه شي. درې ورځي وروسته یې شهزاده طهماسب له تهرانه اصفهان ته وغوښت او پخپله یې د اصفهان تر ښار دباندي بازارګا نومې ځای خپل لښکرځای وګرځاوه او غوښتل یې چې د اصفهان پر تخت باندي د شهزاده طهماسب تر کېنښاستلو وروسته خراسان ته لاړ شي.

شهزاده طهماسب د جمادي الاول په اتمه اصفهان ته ورسېد، خو څرنګه چې په دې پوهېده، د نادرخان په غیاب کښي نه شي کولای چې د اصفهان تخت و تاج وساتي، نو له ډېر ټینګار سره سره یې نادرقلیخان پرې نه ښود چې خراسان ته لاړ شي.

### د زرقان جګړه:

نادرقلیخان څلوېښت ورځي په اصفهان کښي د لوازمو او تجهیزاتو په برابرولو او تقویه کولو بوخت و، وروسته یې چې بیا واورېدل شاه اشرف بیا په شیراز کښي د عسکرو په ټولولو او تنظیمولو بوخت دی، نو د ورستۍ خور په دېرشمه چې سخت ژمی هم و، له یو ستر او قوي

(۱) جهانکشای نادري. ۸۱ مخ.

لښکر سره د ابرقو او مشهد له لاري د شېراز خوا ته روان شو.

له هغي خوا شاه اشرف د شېراز په پنځه فرسخۍ کښي په ( زرقان ) نومي ځای کښي د مقابلې لپاره رااووت، سخت جنګ پېښ شو، خو لکه چي پخوا مو وويل کله چي د شاه اشرف زيات پوځيان له سمقاني، هولي، عربو او د فارس[1] له نورو قبيلو څخه وو، چي په زړه کښي يې د افغانانو له فتحي سره مينه نه درلوده، له دې کبله يې د نادري درنو توپونو د سختو حملو په وړاندي مقاومت ونه شو کړای او شېراز ښار ته ننوتل او له دغه ځايه شاه اشرف د ميامحمدصديق، ملا زعفران او سيدال خان ناصر په واسطه نادر قليخان ته د سولي وړانديز ولېږه او نادرقليخان په درېيو شرطونو د سولي منلو ته حاضر شو:

لومړی: ـ د صفوي کورنۍ بنديان دي له نورو پارسي بنديانو سره نادرقليخان ته وسپارل شي.

دويم: ـ افغانان دي دلي - دلي د پارس په ولايتونو کښي وويشل شي او استوګنه دي پکښي غوره کړي.

درېيم: ـ افغاني مشران دي د نادر په خدمت کښي شامل شي.

لومړي شرط چي آسانه و، ومنل شو، د هغي ورځي په سبا يې د صفوي کورنۍ بنديان له يو تن خواجه سرا سره شهزاده طهماسب ته ولېږل، خو دويم او درېيم شرطونه يې چي د افغاني له آزادۍ غوښتونکي فطرت څخه يې خلاف او منافي بلل او د هغو په منلو کښي د آزادۍ ختمېدل او د غلامۍ او بندګۍ حالت پروت و، نو د شاه اشرف له خوا ونه منل شو.

له دې کبله نادرقليخان شېراز ښار کلابند کړ او اوسېدونکو ته يې سخت اخطار ورکړ، چي که چيري شاه اشرف په ۲۴ ساعتو کښي نادري عسکرو ته ونه سپاري، نو په سختو نادري عذابونو او کړاوونو به اخته شي.

شاه اشرف چي له يوې خوا دغه سخت اخطار واورېد او له بلې خوا د ده د ورور د وژل کېدو خبر وررسېد، چي څه موده پخوا د بصرې په نيولو مامور شوی و او له بلي خوا هم د لار له بغاوت او د کرمان له پاڅون څخه خبر شو، نو اميدونه يې ښځي غوځ شول، نو د سيدال خان ناصر په مشوره او د دوو سوو افغاني سپرو په ملتيا په ايستلو تورو له ښاره ووتل

---

(۱) جهانکشاي نادري.

او په یوه سخته او ناڅاپي حمله کي یې په نادري ستره اردوخای کښي درز پیدا کړ او افغانستان ته روان شو.

دوه تنه افغاني شهزاده ګان (د شاه محمود زامن) اسمعیل او ابراهیم د بني اعمال د اولادې له درېیو کسانو او دیارلسو تنو ښځو سره چي په دغه جمله کښي دشاه اشرف دوې ښځي او د شاه محمود مور هم شامله وه، له شاه اشرف سره د تنګ وخت و نه موند او تول په شیراز کښي د دوی له خواجه سرا سره پاتي شول، خو د شاه اشرف دوې ښځي چي یوه یې د شاه محمود خور وه، د شاه محمود له مور سره پخوا له دې چي د دښمن لاسته ورشي مړې شوې.(۱)

نادرقلیخان په شاه اشرف پسي ډېر عسکر ولېږل او پخپله هم له منظم لښکر سره د (فسا) پله تر نیم فرسخي پوري چي د شیراز په درې فرسخي کښي و، مخکښي لاړ. خو شاه اشرف تر نورو مخکي له هغه ځایه وتلی و او ملا پیرمحمد چي په "میان جیو" مشهور " او د شاه اشرف پیر او مرشد و" له ځینو افغاني فدایانو سره د پل ساتنه پر غاړه اخستې وه او له نادري قراولانو سره یې د جګړې میدان تود وساته او په مېړانه یې دفاع وکړه، تر دې چي د دفاع په لاره کښي یې له ژوند څخه سترګي پټي کړې.

دهغو بندیانو په ډله کښي چي د نادري لښکر په لاس بندیان شوي وو، دوه تنه افغاني مخور او بانفوذه کسان میامحمد صدیق او بل د هغې دورې مشهور عالم ملا زعفران کله چي د لښني سیند له پله څخه له بندیانو سره تېرېده، مرګ یې د اسارت او ذلت تر ژوندون ښه وباله، نو ځان یې سیند ته وغورځاوه او خپله اروا یې آزاده کړه.(۲)

هغه نور بندیان چي په دې ډله کښي د جهانکشای نادري په وینا دوه درې زره کوچنیان او تي روډونکي ماشومان او ډېري ښځي هم شاملې وې، کله چي اصفهان ته ورسېدل، ټول ووژل شول او د محمد مهدي د وینا له مخي " په شاهي فرمان سره دغه بندیان ټول د ښځو او

---

(۱) جهانکشای نادري، ۸۴ او ۸۵ مخونه.

(۲) جهانکشای نادري، ۸۶ مخ.

کوچنیانو په ګډون ووژل شول."[1]

**د شاه اشرف مړینه:**

شاه اشرف وروسته تردې چې خپله دفاعي قوه يې له لاسه ورکړه، له ځينو لږو افغانانو سره د سيستان له لاري کندهار ته روان شو او څرنګه چې په هر ځای کي له تيت و پرکو حملو سره مخامخېده او د ده له ملګرو څخه هم يوازي دوه تنه ژوندي پاتي وو ، نو په پای کښي په ۱۱۴۲هجري کال کښي د عبدالله خان بلوڅ د زوی ابراهيم په لاس په لوټ دښته کښي ووژل شو.[2]

ځيني تاريخ کښونکي ليکي چې شاه اشرف په لاره کښي ناروغ شو او پخپل طبيعي مرګ وفات شو.[3] خو زياتره تاريخ کښونکو لومړی قول تصديق کړی، يوازي احمد توکلي د شاه اشرف د وژونکي نوم (بهلول) ليکلی دی.[4]

قاتل د شاه اشرف تر وژلو وروسته د هغه سر دالماسو له هغي ټوټې سره چې شاه اشرف له ځان سره درلوده، شاه طهماسب ته ولېږه.[5]

خو د جهانکشای نادري ليکوال ميرزا مهدي افسانه چې د شاه اشرف د وژلو نسبت د شاه محمود د ورور، شاه حسين هوتکي له خوا مقرر شوي سړي ته کوي، چې ګواکي د هغه تر وژلو وروسته يې د متابعت عريضه د ملا زعفران په لاس شاه طهماسب ته لېږلې ده، غالباً دا د افغانانو په نسبت د ميرزامهدي د هغه ډېر تعصب او ډېري بدبينۍ څرګندوی دی، چې د ده د کتاب له هري کلمې څخه په هغه وخت کښي چې د افغانانو ذکر کوي روښانه او ثابته ده، خو که داسي نه وای، نو په هغه صورت کښي چې شاه حسين د شاه طهماسب متابعت منلی و، نو بيا څه اړتيا وه، چې تر متابعت وروسته يو کال تېر شوی نه و، چې له نادري يرغلګرو او تيري کوونکو سره يې دکندهار د آزادۍ ساتني لپاره جګړه کوله او د خپلي آخري

(۱) جهانکشای نادري، ۸۶ مخ.
(۲) تاريخ ايران، سرجان مالکم، د تتمة البيان ژباړه، کابل چاپ، ۱۰۲ مخ. د پښتنو تاريخ، لومړی ټوك، ۹۱ مخ.
(۳) د پښتنو تاريخ، لومړی ټوك، ۹۱ مخ.
(۴) روابط سياسي ايران و افغانستان، ۱۷ مخ.
(۵) تاريخ ايران، سرجان مالکم او داسي نور.

دفاعي قوې له لګولو څخه يې ډډه ونه کړه؟

همدغه سبب دی چي نورو تاريخ کښونکو لکه سرجان مالکم، ميليسن، سيدجمال الدين افغان، سرپرسي سايکس، قاضي عطاءالله خان او داسي نورو د دې جعلي نکل او افسانې له يادولو څخه ځانونه ژغورلي او ليکلې يې نه ده او د شاه اشرف وژل يې د عبدالله خان بلوڅ د زوی ابراهيم په نامه ليکلی دی. په هر صورت، د شاه اشرف په وژل کېدو سره په اصفهان کښې د افغانانو سلطنت تر اوو کلونو وروسته پايته ورسېد.

***د شاه اشرف سکې:***

وروسته تر دې چي د عثماني دولت له خوا د شاه اشرف سلطنت په رسميت وپېژندل شو، نو شاه اشرف پخپل نوم سکه ووهله، چي وروسته بيا د (اشرفی) په نامه مشهوره شوه.

***د شاه اشرف سکې په دې ډول وې:***

۱ – د طلاوو سکه:

الف: د سکې پر مخ باندي: [لا اله الا الله محمد رسول الله (محمد)] د سکې پرشا: [ به اشرفي اثر نام آنجناب رسيد شرف ز سکهٔ اشرف به آفتاب رسيد].

***د اصفهان ضرب (۱)***

ب: د سکې پر مخ باندي: [ لا اله الا الله محمد رسول الله ]

د سکې پرشا: [ دست رد بر بلا ربود گناه   داد تغيير سکه اشرف شاه](۲)

۲ – د سپينو زرو سکه:

الف: د سکې پر مخ: [ دست زد بر جلالته اشرف شاه بود تعبير سکه داد کنکا].

د سکې پرشا: [ جلوس ميمنت مانوس در دارالسلطنهٔ اصفهان ۱۱۳۷ ](۳)

ب: د سکې پر مخ: [لا اله الا الله محمد رسول الله]

د سکې پر شا:

ز الطاف شاه اشرف حق شعار   بزر نقش شد سکهٔ چار يار ضرب اصفهان(۴)

---

(۱)، (۳)، (۴) له (مسکوکات افغانستان در عصر اسلامي نومي رسالې څخه نقل، د استاد احمدعلي کهزاد ليکنه، ۸ مخ.

(۲) تتمة البيان ۱۰۲ مخ. د عين الوقايع په حواله.



اعلیحضرت شاه اشرف هوتك



د هوتکي دورې نومیالی سپه سالار سیدال خان ناصر

# شپږمه برخه

## د شاه حسین دوره

هغه مهال چې د میرویس مشر زوی شاه محمود د ۱۱۳۵ هجري - ۱۷۲۲ م کال د جنوري په میاشت له کندهاره د کرمان پر لوري روان شو خپل کشر ورور میرحسین یې پرخپل ځای کښېناوه او د هېوادنیو او سلطنتي چارو اداره یې په بشپړ ډول ده ته وسپارله.

میرحسین چې وروسته بیا په شاه حسین مشهوره شو، د فراه له سبزوار (اوسني شینډنډ) تر غزني، ګوملدرې، پښین، شال د غازي خان او اسمعیلخان تر دېره جاتو پوري پنځلس کاله خپلواکه او مستقله پاچاهي وکړه، چې پر هند باندې د نادرشاه افشار په حمله پایته ورسېدله.

**د ژوند پېل:**

شاه حسین د ۱۱۱۴ هجري کال د لومړي خور (ربیع الاول) په ۲۳ مه نېټه د کندهار د غلجیو د کلات ولایت اړوند په (سیوري) سیمه کښې وزېږېد او تر دوولس کلنۍ پوري یې د هغې زمانې متداول علوم لکه فقه، تفسیر، منطق او د بلاغت او ادب فنون د هغه وخت له مشهور عالم ملایار محمد هوتک څخه زده کړل. تر هغه وروسته مستقیماً د خپل نباغلي پلار تر روزنې لاندې راغی. د قومي ریاست چلند او د هېواد اداري چارو سمبالول یې له خپل پلار څخه زده کړل، خو په څوارلس کلنۍ کښې د پلارتوب د مهربانۍ له سیوري څخه بې برخې شو او له خپل مشر ورور شاه محمود سره یې چې د پلار او تره تر مړینې وروسته یې د چارو واګې پخپل لاس کښې نیولي وې، یو ځای ژوند کاوه.[1]

(۱) پټه خزانه، ۱۰۸ او ۱۰۹ مخونه.

### د سلطنت پیلېدل:

شاه محمود هوتک چې په ۱۱۳۲ هجري کال کښې د فراه خوا ته او وروسته بیا د کرمان د خلګو په غوښتنه هغې خوا ته لاړ او د سلطنت د چارو واګې یې ( بیجن سلطان لکزي ) ته وسپارلې، لکه چې ده ( مخکې مو ولوستل) د ملک جعفرخان په مرسته او ملګرتیا د شاه محمود په غیاب کښې د شاه محمود د سلطنت له منځه وړلو لپاره د دسیسو په جوړولو لاس پوري کړ، شاه محمود د بیجن سلطان او د ده د ملګرو د خبرداری او منعه کولو لپاره بېرته کندهار ته راغی؛ خو پخوا له دې چې شاه محمود کندهار ته ورسېږي، د هغه کشر ورور شاه حسین، بیجن سلطان او د ده ملګري له منځه وړي وو او د سلطنتي چارو اداره یې پخپل لاس کښې نیولې وه.

له همدې کبله هغه وخت په ۱۱۳۵ هجري کال کښې شاه محمود بېرته د کرمان خوا ته د تګ اراده وکړه، شاه حسین یې رسماً خپل ځایناستی (جانشین) وټاکه، د قوم رئیسانو او مشرانو هم د شاه محمود په متابعت دی پخپله پاچاهي ومانه او خطبه یې د ده په نامه ولوستله او سکه یې د ده په نوم ووهله.[۱]

شاه حسین چې په پیل کې یې یوازې د کندهار د نږدې او اړوندو سیمو سلطنت درلود، په ۱۱۳۸ ه کال یې د خپل سلطنت لمن لویدیځې خوا ته تر هرات او سیستانه پورې او ختیځې خوا ته د ګومل تر درې او جنوب خوا ته د اوسني جنوبي پښتونستان تر شمال او ږوب ایالتونو پورې پراخه کړه.[۲] روایت کوي هغه وخت چې د شال سیمې[۳] د فتحې خبر د شاه حسین دربار ته ورسېد، د دربار له شاعرانو څخه یوه تن "ملا زعفران" په دې هکله دغه شعرونه په پښتو ولوستل، چې نه

---

(۱) پټه خزانه، ۱۰۹ مخ

(۲) پټه خزانه، ۱۱۱ مخ.

(۳) شال: یا شالکوټ د جنوبي پښتونستان د اوسني کوټې په حدودو کښې پروت دی، چې د ابوالفضل په وینا د اکبري عصر په تشکیلاتو کې د کندهار له ختیځو توابعو شمېرل کېده اوپه هغه کې کاسي او بلوڅ افغانان اوسېدل.(آیین اکبري) ۱۸۹ مخ.

يوازي پخپله شاعر د انعام وړ وګرځېد، بلکي ټولو حاضرينو ته يو يو زعفراني شال ورکړل شو.[۱] شعرونه دغه وو:

د حسـين پادشـاه د بخت تنـداره ګوري چي يې فتحه په لښکرو ړوب و شال کا

چي دا زېری يې راوړی دی حضـور تـه نو زعفران انعام پرسر زعفراني شال کـا

### د شاه حسين شخصيت:

شاه حسين هوتک يو شاعر طبيعته او علمدوسته پاچا و، چـي د ده په دربار کښي عالمانو، اديبانو او شاعرانو ډېر عزت او لوړ مقام درلـود او لـه خلګو سره يـې هم مهربانـه او بـې آزاره چلنـد درلـود او لکـه چـي ليکـي دکندهار خلګو د ده د سلطنت په دوره کښي ارام اوهوسا ژوند درلود.[۲]

د شاه حسين علمدوستي او ادبپالنه تر دې کچې وه، چي په هـره اوونۍ کښي به يو وار په سلطنتي کتابتون کښي يو علمي او ادبي مجلس او کله به مشاعره جوړېده، چي هغې ته به يې د کندهار پـوه عالمـان، مشـهور اديبان او شاعران غوښتل او هغه ورځ به يې په علمي او ادبي بحثونـو او د شعرونو په اورېدلو تېروله. ( د پټـې خزانې ) قيمتي کتاب د ده په امر وليکل شو او هم د ده په امر کاتبان پېښور ته ولېږل شول، چـي د رحمـان بابـا لـه ديوان څخه څو نسخې را نقلې کړي او کندهار ته يـې راوړي، چي لـه دې لاري يې د پښتو ادبياتو پر تاريخ باندي احسان کړی دی.

پخپله يـې هم په پښتو او پارسي کښي شـعرونه ويـل او يـو مرتـب اوبشپړ ديوان يـې درلود، چي يوه بېلګه به يې د هوتکي دورې د شـاعرانو او ليکوالو په برخه کښي راوړل شي.

شاه حسين له دې عالمانه او شاعرانه شخصيت سره سره له پـوځي او عسکري مهارت څخه هم بې برخې نـه و. کلـه چـي د ده د سـلطنت تـر پنځلسو کلونو وروسته نادر شاه افشار پخپلو ټولـو لويـو ځواکونـو پرکندهـار حمله وکړه، څه له پاسه يو نيم کال يـــې د نادرشـاه لـوی لښکـرد کندهـار تر ښار دباندي وسـاته او د شـاه حسين د مردانـه دفـاع پـه وجـه نـادري ځواکونو ونه شول کړای چي څه ناخه په يونيم کال د کندهارښار يوه کلا هـم

(۱) پټه خزانه، ۱۱۳ مخ.

(۲) پټه خزانه.

فتحه کړي. دغه دي د نادرشاه افشار او شاه حسين هوتک تر منځ دجګړو د پېښو بيانول پيلېږي:

***پر کندهار باندي د نادرشاه حمله:***

له ايرانه د افغانانو تر وتو وروسته د سلطان حسين صفوي زوی شهزاده طهماسب رسماً د هغه هېواد پاچا شو او نادرقليخان ته يې د هغه د خدمتونو په بدل کې د کرمان خراسان، مازندران او سيستان حکمراني وسپارله، خو نادرقليخان چي له پيله يې له سلطنتي تخت و تاج څخه سترګي پټې کړې وې او شاه طهماسب يې له خپلي خوا پر تخت باندي کښېنولی باله، نو دوه کاله وروسته چي د ده د اقتدار او نفوذ ساحه د هېواد په هره څنډه کښي خپره شوه، د ۱۱۴۳ هـ کال د لومړی خور(ربيع الاول) په څلورمه نېټه يې شاه طهماسب دندي پرېښودو ته اړ کړ او د دې لپاره چي د تاج و تخت لاسته راوړلو لپاره زمينه برابره کړي او د شاه طهماسب اته مياشتنی زوی شهزاده عباس ميرزا يې يوازي د نوم لپاره په سلطنت نامزد کړ او پخلپه شاه طهماسب يې له خپلي کورنۍ سره د لومړی خور په ۱۴ مه نېټه د خراسان مشهد ته تبعيد کړ.

کله چي په ۱۷۳۶م کال کښي د ايران کوچنی او ماشوم پاچا عباس ميرزا مړ شو، نو نادرقليخان مشران او وزيران راوبلل او ځان يې د هغوی په واسطه د ايران د شهنشاه په توګه وټاکه او د ۱۱۴۸ هجري کال د کوچني اختر ( شوال ) مياشتي په ۲۴ مه نېټه د پنجشنبې په ورځ پر شهنشاهي تخت باندي کښېناست او د ځان لپاره يې ( نادرشاه شهنشاه ايران ) لقب اعلان کړ، چي وروسته بيا په نادرشاه افشار مشهور شو.[1]

(۱) لکه ميرزامهدي چي د نادرشاه د دربار پېښو ليکونکی د جهانکشای نادري په کتاب کښي وايي چي ګويا مشرانو او وزيرانو ته د نادرشاه له خوا د سلطنت د منلو لومړی شرط دا و، چي هغوی د اهل سنت او جماعت په مذهب کښي داخل شي. د ميراز مهدي د متن ژباړه داسي ده:

"... حضرت ظل الهی وفرمايل چي: د حضرت پيغمبر ﷺ د رحلت له زماني څخه څلور خليفه ګان يو له بل نه وروسته د خلافت د امر متکفل شوي دي، چي هند، روم، او ترکستان ټول د دوی په خلافت قايل دي او په ايران کښي هم پخوا همدغه مذهب دود و، شاه اسمعيل صفوي د حال په مباديو کښي د خپل دولت د

←

نادرشاه افشار تر واکمنۍ وړاندي پر بغداد برید کړی و او ترکانو ته یې دوه واري ماتي ورکړې وه او هم یې آرمینیا او جارجیا فتحه کړل او د روم له سلطان سره یې د سولې تړون کړی و اوس یې تر واکمنۍ وروسته بختیاري قبیله چي تل به یې په هغه هېواد کښي چور او چپاوونه کول او ډاکې به یې غورځولې هم د ځان تابع کړه.

کله چي د هېواد له کورنیو او سرحدي پېښو څخه وزګار شو، د کندهار پاچا شاه حسین هوتک ته یې یو قاصد ولېږه، چي دی هم د نادرشاه د حکومت باج ورکول ومني او د نادرشاه د سلام لپاره اصفهان ته حاضر شي، خو شاه حسین د هغه د انتظار پرخلاف داسي ځواب ور ولېږه:

" ... د لوی خدای ﷻ په نعمتونو کښي هغه نعمت چي زما او زما د قوم لپاره ډېر ګران، غوره او د قدر وړ دی، هغه آزادي او د ملي ناموس او پت ساتنه ده."

دغه ځواب چي ور ورسېد، نو نادرشاه پوه شو چي د کندهار افغانان پخپله خوښه او رضا متابعت او اسارت ته حاضر نه دي، نو له دې کبله د کندهار افغانانو د ټکولو او له منځه وړلو په سوچ کي شو او پر کندهار باندي د حملې لپاره د وړ تدراکاتو او ترتیباتو په نیولو بوخت شو.

هغه و، چي په ۱۱۴۹ هـ کال ۱۷۴۷م کال یو لکو تنو عسکرو پر افغاني خاوره باندي د تجاوز په نیت د سیستان له لاري د کندهار خوا ته روان شول.

شاه حسین چي د نادرشاه له عزم څخه خبر شو، نو دی هم سملاسي

---

← اصلاح په لحاظ دغه مذهب پرېښود او د تشیع مذهب یې خپور او دود کړ او سربېره پردې ښکنځل او رفض یې چي بې ګټې کار او د فسادونو سرچینه ده د عامو او خاصو په ژبو او خولو کښي جاري کړل. د فساد زمینه یې برابره کړه او د ایران خاوره یې په فتنې او فساد سره ګډه او ککړه کړه. ترهغه مهاله چي دغه ناوړه او بد عمل خپور وي، دا فساد به له مسلمانانو څخه لیري نه شي.

که چیري دایران خلګ زما سلطنت غواړي او د خپلي هوسایي غوښتونکي وي، باید د دې ملت چي زموږ د درنو اسلافو د مذهب مخالف دي، هغه پرېږدي او د اهل سنت او جماعت په مذهب راواوړي ... ". *جهانکشاي نادري*، ۲۱ مخ.

د دفاعي ترتیباتو په نیولو لکه د عسکري برجونو او کلاګانو په ځواکمنولو او ټینګولو او د عسکرو په تقویه کولو لاس پوري کړ. د کندهار افغانان هم په ټول ځواک له خپلي خاوري څخه د دفاع لپاره چمتو شول.

نادرشاه د دې کال د کمکي اختر ( شوال ) میاشتي په دویمه له سیستان څخه د فراه د دلارام او دلخک خوا ته روان شو او د دغي میاشتي په اتلسمه ګرشک ته ورسېد. کلا ساتونکي دفاع ته چمتو شول او نادرشاه کلا تر محاصرې لاندي ونیوله، سخت جنګ وشو، خو وروسته تردې چي نادرشاه په درنو او لویو توپونو د کلا په برجونو او حصار کښي درز پیدا کړ د ساتونکو دفاعي ځواک مات شو او کلا د نادرشاه لاسته ورغله.

تر هغه وروسته نادرشاه د باباعلي بېګ زوی کلب علیخان افشار د زمینداور او هزاره جاتو د کلاګانو په نیولو او بله ډله یې د بُست کلا په نیولو ماموره کړه او پخپله د شوال په ۲۱ مه نېټه د شاه حسین هوتک له هغو ملي ځواکونو سره د دریېو ورځو تر سختو جنګونو وروسته چي له شلو زرو تنو سره د هلمند سیند پر غاړه د کندهار خوا ته د نادرشاه د ځواکونو د پوریوتلو خنډېدل، وکړای شول، چي ځان ته د هلمند له اوبو څخه د پورېوتلو یوه لار پیدا کړي او تېر شي.

شاه حسین چي د نادرشاه ځواکونه تر خپلو قواوو پنځه برابره زیات او قوي ولیدل، نو تصمیم یې ونیو، چي بېرته کندهار ښار ته لاړ شي او د کلا په ټینګولو لاس پوري کړي.

نادرشاه له هلمند سیند څخه را پورېووت، خو څرنګه چي شاه حسین له ځمکو او پټیو څخه وانبه او غلې ټولي کړي وې، نادرشاه بېله دې چي د بُست او زمینداور د کلاګانو نیولو ته انتظار وباسي، له هزاره جاتو څخه د غلې برابرولو لپاره شاه مقصود سیمي ته لاړ، چي د کندهار ښار د شمال لویدیځ په پنځوس کیلو متری کښي پرته ده، دوولس ورځي هلته پاتي شو.

کله چي د باباولي د مزار په برابر د ارغنداو سیند غاړي ته ولېږدېدل او څرنګه‌چي د کال پای و، نو د ارغنداو له سیند څخه د تېرېدو په لټه کښي و، کله چي شاه حسین د ارغنداو سیند غاړي ته د

له رسېدو څخه خبر شو، نو د شپې له خوا يې له يو ټولګي افغـاني عسـکرو سره د نادرشاه پر لښکرځای برید وکړ او سخت جنګ ونښت، چـې نـژدې وو د نادرشاه لښکر وارخطا شي، خو د سبا روښنايي د هغوی لپاره ګټوره تمامـه شـوه او شاه حسين پرته له دې چې کوم کار ترسره کړای شي، بېرته کندهار ته لاړ.

د هغې شپې په‌سبا د نادرشاه عسکرو د کوکران کلا په محاذ کښې د ارغنداو له سينده د تېرېدو لپاره يوه لار او ګودر وموند او له اوبو نه راتـېر شول. د (لکي) غره له څنګه چې کلا يوه برخه د هغه پر سـر پرتـه وه، پـه داسي حال کښې چـــې د کـلا سـاتونکو پـر نـادري لښکـرو ډزي کولـې د کندهار کلا ختيزي خوا ته ورسېدل.

د کندهار ښار کلا په هغه وخت کښې د (قيتول) غره پر سر باندي ودانه وه، چې اوس يـې يوې څنډې ته چهل زينه وايي.

*د کندهار محاصره:*

نادرشاه په پيل کې ګومان کاوه، لکه څنګه چې له کرشک نـه تـر کندهاره پوري د افغانانو له کوم دوامـدار، سـخت مقـاومت او دفـاع سـره مخامخ نه شو، نو د کندهار د کلا نيول به هم کومـه سـتونزه او خنډ و نـه لري، خو کله چې کـلا تـه نـژدې شـو او د کـلا د اسـتحکامونو او د خپلـو ځواکونو په‌وړاندي د افغانانو له جوش و خروش څخه خبر شو، نو پوه شـو چې د کلا نيول لکه ده چې ګومان کاوه، دومره آسانه نـه دی، نـو لـه دې کبله يې تصميم ونيو، چې کلا محاصره کړي او د کلا اوسـېدونکي د قحـط، لوږي او ښار تـنـه د خوراکـي مـوادو د لارو بندولـو پـه فشـار تسـليمېدو او اطاعت ته اړ کړي.

په مقابل کښې يې شاه حسين مخکي له مخکـي پـه پـوره انـدازه خوراکي مواد، پوځي سامان او نور توکـي ذخـيره کـړي وو، چـې د ښار د خلکو پر اړتياوو سربېره د شلو زرو تنو عسکرو لپاره يې د اوږدې مودې لپـاره هم کفايت کاوه.

نادرشاه له يوې خوا د کندهار ښار په محاصره لاس پوري کـړ، لـه بلي خوا يـې يو ټولـګی پـوځ د فتـح عليخـان افشـار چرخچـي باشـي پـه

مشرۍ د کندهار د کلات کلا په نیولو مامور کړ، چې شاه حسین سیدال خان ناصر له خپل زوی "محمد" سره د کلات د دفاع او د فتح علیخان د حملې د مخنیوي لپاره وټاکه.

سیدال خان کولای شول چې پر یرغلګرو باندې ناځاپه حمله وکړي او له پښو یې وغورځوي، چې په همغه شپه له نادري بندیانو څخه یو تن دکندهار له کلا څخه ووت او وتښتېد اونادرشاه ته یې دسیدال خان له تګ څخه خبر ورکړ او نادرشاه پخپله له یو لوی پوځ سره هغې خوا ته لاړ او له ښارصفا څخه تېر شو او کلات ته یې نږدې د سیدال خان لاره ونیوله، تر سختې جګړې وروسته سیدال خان او د شاه حسین زوی محمد مجبوره شول چې دننه د کلات کلا ته ننوزي او له هغه ځایه په مدافعه لاس پورې کړي.

نادرشاه د کلات د محاصرې لپاره یو څه عسکر وټاکل او پخپله بېرته کندهار ته لاړ او هغه بندي ته یې نوازش او انعام ورکړ، چې ده ته یې د سیدال خان د تګ خبر ورکړی و.

د لوی اختر (ذي الحجې) میاشتې په اتمه نادرشاه په شېرسرخ(سور زمري) نومې ځای کښې یو پراخ او لوی ښار جوړ کړ، چې په هغه کښې کورونه، ودانۍ، بازارونه، حمامونه، رباطونه، جوماتونه او قهوه خانې وې، چې له ترنک سیند څخه یې هغه ته اوبه بوتللې او ( نادر آباد ) نوم یې ورباندې کښېښود.[۱]

د قاضي عطاءالله خان په نظر نادرشاه د دغه ښار په جوړولو کښې دوه مقصدونه درلودل: یو دا چې د پوځ د استوګنې لپاره یې د یو اردو ځای اړتیا حس کوله او دویم دا چې غوښتل یې د کندهار خلک په دې پوه کړي چې دی د کندهار له نیولو څخه نه تېرېدونکی دی.

د نوی ښار "نادر آباد" ودانۍ او جوړېدل یې سر ته ورسېدل، خو د کندهار د زاړه ښار محاصره لا روانه وه او نادرشاه له زاړه ښاره ګردچاپېره د فرسخ د څلورمې برخې په فاصله د محاصرې د ټینګولو او تنګولو لپاره کوچنۍ کلا ګانې او پوځي برجونه جوړ کړل، چې په هغو کښې نادري

(۱) جهانکشاي نادري، ۲۲۵ مخ.

قراولان له توپونو سره په خارنه مؤظـف وو، چـي د ښار کلابنـد خلـګ ونـه کړای شي، چي تر ښار دباندي لاړشي اوهم دننه ښار ته هم خوراکي مواد ونه رسېږي.

د کندهار محاصره د محمدمهدي په روايت ( لــس مياشـتي ) او د قاضي عطاءالله خان په روايت يو نيم کال اوږده شوه.[1]

په پای کښي له يوې خوا د بُست کلا د افغانانو دفاعي ځواک پايته ورسېد او د ۱۱۵۰ هـ کال د امامانو (محرم) مياشتي په ديارلسمه تسليمېدو تـه اړ شول او له بلي خوا د نادري پوځ هغه برخـه چـي د سيسـتان پـه نيولـو ماموره شوې وه، له هغه ځايه وزګاره شوه او کندهار ته راغله او له بلي خوا د نادر زوی رضاقليـخان د افغانستان زياتره شمالي ولايتونه ونيول او تـردې چي پر بخارا باندي د حملې په نيت له آمو سيند څخه تېر شو، خو نادرشاه ورته اجازه ور نه کړه، نو بېرته بلخ ته راغی. له بلي خوا د زمينـداور حـاکم نداخان افغان چي د شاه حسين له خوا هلته ټاکل شـوی و، د دېوان قلـي بېګ افشار او يار بېګ سلطان په وړاندي خپله دفاعي قوه له لاسـه ورکـړه او د دې کال د شوال مياشتي په لسمه مغلوب شو او له بلـي خـوا د کـلات کلا تر دوو مياشتو سختو جګړو وروسته د نادري لښکر د يو سالار امـام وردي بېګ لاسته ورغله، د شاه حسـين زوی محمـد او سـيدال خـان نـاصر چـي افغاني دفاع کوونکي وو، دواړه د يرغلګرو له خوا ونيــول شـول او نـادري دربار ته يې د هغوي تر حاضرولو وروسته محمد تر نظارت لاندي ونيـو او د هوتکي دورې سپه سالار او پوځي اتل سيدال خان د نادرشـاه پـه امـر لـه دواړو سترګو څخه محروم کړای شو.

په دې توګه د نادرشاه د عسکرو زياتي برخې چـي د افغانسـتان د بېلابېلو ولايتونو په نيولو مامورې شوې وې، يوه پــه بـل پسـي کندهـار تـه راغلې او په کندهار کښي د نادري عسکرو ځواک زيات شو.

خو له دغو ټولو پېښو سره د کندهــار غيرتمنو مدافعينـو لا د کندهار ښار په دفاع کښي هڅه کوله او د ثبات لپاره ښېي خرلې وې.

په پای کښي نادرشاه وروسته تردې چي د تيت و پرکـو ځواکونـو

(۱) جهانکشای نادري، ۲۳۱ مخ. د پښتنو تاريخ، لومړی ټوك، ۹۴ مخ.

زياته برخه او هم نوي پوځ د ده د عسکرو ملاتړ ته ورسېد، د کندهار پر کلا باندي يې د يوې بلې سختي حملې ترتيبات ونيول.

له هري خوا يې د ښار پر کلا او برجونو په زياته کچه حمله وروړه او دوې ورځي ډېر سخت جنګ وشو، خو نادري عسکرو کوم کوچنى برى هم ترلاسه نه کړ.

په درېيمه ورځ د بختياري قبيلې بهادرانو چي په زړورتوب کښي د نادر په لښکر کښي وتلي وو، په داوطلبي ډول پـه ډېر شـدت سـره حمله پيل کړه، چي د ورځي تر پايه پوري دوى هم کوم کـار ونـه کـړاى شـو او بېرته ناکام لاړل.

بله ورځ د نادرشاه پوځيانو د هغه برج د نيولو لپاره چي د کلا پـه شمال کښي د غره پر څوکه د چهل زينې خوا ته پروت دى، په ډېره توندى سره بريد وکړ، د نادرشاه د عسکرو توپچيانو خپل درانه توپونه چي د ګولى وزن يې د هغه وخت اووه - اته منه کېده په جرثقيل هغه برج ته وخېژول، چي د شمالي برج ساتونکي تر اور لاندي ونيسي، هغه بـرج (دده بـرج ) نومېده او د کندهار کلا په لويديزه خوا کښي پروت و.

خو د شمالي برج ساتونکو چي شمېر يې تر درېيو سوو تنو زيات نه و، تر پايه پوري دفاع وکړه او نادري عسکرو په دومره شدت او د تـوپونـو په ډزو ونه کړاى شول، چي دغه برج ونيسي او د برج ساتونکو خپلې دفاع ته همداسي دوام ورکاوه او تسليمېدو ته يې غاړه نه کښېښودله.

تر دې چي د ۱۱۵۰ هـ کـال د ميـاني ( ذوالقعـدې) مياشـتي پـه ۲۲ مه نېټـه د پنجشنبې په شپه له هري قبيلې نه درې سوه تنه په داوطلبانـه ډول وټاکل شول او د پوځي سيالى په بڼه يې په ډېر شدت پر کلا بريد وکړ، خو بيا يې هم وروسته تردې چي دوه سوه تنه تلفات ورکړل، شاتـګ تـه اړ کړاى شول او د دې مياشتي تر پايه پوري يې له نادري عسکرو سره تـر ډېرو سختو، سختو بريدونو وروسته کوم برى تر لاسه نه کړاى شو.

د ۱۱۵۰ هـ کال د لوى اختر مياشـتي پـه دويمـه شـپه يـې بيـا لـه بختياري قبيلې څخه درې څلور زره تنه وټاکل او د کلا پر برجونو باندي په

حمله مامور شول او پخلپه نادرشاه هم پخپل ټول ځواک د چهل زینې برج په خوا کښې د حمله کوونکو د ځواکمنولو لپاره هغه شپه سبا کړه، خو بیا هم تر سهاره پوري د کلا پر نیولو بریالي نه شول.

سبا ته دغرمې پر وخت یرغلګرو د( دده برج ) له خوا سخت چپاو وروړ او تر ډېرو جګړو وروسته د لومړي ځل لپاره د برج په نیولو بریالي شول او له هغه خایه یې د هغه برج خوا ته چې په چهاربرج مشهور و حمله وکړه، که څه هم مدافعینو درې واري د یرغلګرو حملې شا ته وتمبولې او رد یې کړې، خو کله چې یرغلګر هرځل د شا له خوا تقویه کېدل او د میرزا مهدي په قول ډله ډله وسلوال او هوسا عسکر د یرغلګرو مرستي او ملاتړ ته راتلل او له بلې خوا مدافعه کوونکو افغانانو ته له هیڅ خوا د ملا تړ امید نه و، هغه برج هم د یرغلګرو لاسته ورغی او له هغه خایه یې دکلا دروازې هم په ګولیو وویشتلې او په پای کې یې کلا لاسته راوړه.

شاه حسین له خپلې کورنۍ سره قیتول ته چې د کلا په جنوب کښې د غره پر سر پروت و لاړ او د ښار نور اوسېدونکي د میرزا مهدي په وینا ( ښځې او نارینه څه له تېغه تېر او څه بندیان شول)[1] د یرغلګرو له خوا پر قیتول هم د درنو توپونو ګولۍ اورول پیل شول او هغه وخت څرنګه چې د افغانانو او شاه حسین ټول دفاعي ځواک پایته رسېدلی و او له بلې خوا د هېواد زیاتره ولایتونه د نادرشاه لاسته ورغلي وو او هم له هیڅ خوا شاه حسین ته د ملاتړ او مرستي یو کوچنی امید هم نه و پاتي، له دې کبله یې د ځای له پرېښودو پرته بله چاره نه لیدله.

هغه وو چې د هغې ورځې په سبا یې د متارکې وراندیز د خپلې عالمې خور مېرمن زینت[2] په لاس له څو تنو افغانانو سره د باباولي له دروازې دباندې و نادرشاه افشار ته ولېږه. نادرشاه چې له پیله یې د افغانانو پر زړورتیا او مېړانه زړه بایللی و او غوښتل یې چې د هندوستان پر پراخ هېواد باندې په حملو کښې د افغانانو یو لښکر

(۱) جهانکشای نادري، ۲۳۵ مخ.

(۲) د دې مېرمني د حال شرحه دې ددې کتاب په اوومه برخه کې ولوستل شي.

برابر کړي او له ځان سره بوځي. نو له دې کبله او هم يې د افغانانو د زړونو جلبولو لپاره د متارکې وړانديز ومانه.

تر متارکې وروسته يې شاه حسين له اولاد، خپلوانو او د تره له زامنو سره مازندران ته تبعيد کړ[1] او امر يې وکړ چې د کندهار د زوړ ښار کلا او ټول برجونه دې چې د غره پر څوکه ودان شوي، وران شي او له خاورو سره د ې يو شي، تر هغه وروسته يې افغانان د نادر آباد په نوي ښار کښي استوګني ته اړ کړل او پخپله نادرشاه وروسته تر دې چې زيات شمېر افغانان يې په عسکرو کښي شامل کړل د کابل خوا ته روان شو.

***د شاه حسين مړينه:***

شاه حسين هوتک په کندهار کښي تر پنځلس کلن سلطنت وروسته د ١١۵٢ هـ کال د برات (شعبان) مياشتي په لسمه په مازندران کي وفات شو.[2] او د ده په مړيني سره د کندهار د هوتکيانو د سلطنت او حکمرانۍ لړۍ پايته ورسېده.

(١) جهانکشای نادري، ٢٣۵ مخ.

(٢) تاريخ سلطاني، ٩٠ - ٩٦ مخونه. خورشيد جهان ١۵٦ - ١٦١ مخونه.

# اوومه برخه

# د هوتکیانو د دورې نومیالي

په دې برخه کې د هوتکي دورې ځیني هغه جنګي مېړونه، پوهان، شاعران او قومي مشران ترهغه ځایه چي د هوتکیانو په سلطنت پوري اړه لري او هم يې نومونه د دې کتاب د لیکوال له پامه تېر شوي او د هغوی ژوندلیکونه لاسته راغلي دي، د (الفبا) په ترتیب به د هغوی پېژندګلوي وشي.

خو دا لنډ بیان د هوتکیانو دورې د ټولو نومیالیو کسانو د حال او ژوند د پېښو بشپړه شننه نه شو بللای، خو د دې لپاره چي ځیني هغه نومیالي کسان چي تاریخ کښونکو یاد کړي، له بیان څخه پاتي نه شي نو په لنډ ډول د هغوی یادونه يې ګټه نه ده.

## (الف)

### ۱- ابدال خان ناصر:

دی د سیدال خان ناصر ( د هوتکیانو دورې د مشهور سپه سالار) پلار دی، لومړی د مقر ( وازې خوا ) له مربوطاتو څخه په (ډیله) سیمه کي اوسېده، کله چي سلطان ملخي توخي خپلواکي لاسته راوړه او له غزني څخه يې تر جلدکه پوري مستقل حکومت جوړ کړ. نو ابدال خان له خپلي قبیلې سره اتغر سیمي ته لاړ او د عادلخان توخي په ملتیا يې د کندهار له بیګلربېګي سره چي د صفوي حکومت له خوا ټاکل شوی و، جنګونه او مقابلې وکړي او پرې يې نه ښود چي کلات د پردي بیګلربېګي تر نفوذ لاندي راشي.[۱]

### ۲ - ابراهیم هوتک :

د شاه محمود هوتک زوی، چي د شاه اشرف تر ماتي وروسته په اصفهان کښي د نادرشاه د عسکرو لاسته ورغی.

(۱) پټه خزانه، ۱۶۹ مخ.

**۳ - ابراهیم بلوڅ :**

د عبدالله بلوڅ زوی او د شاه اشرف افغان قاتل دی، چې په (۱۱۴۲ هـ) کال کښې د هلمند د ناوې د ګرمسېر په حدودو کې یې وواژه او د هغه سر یې د الماسو له هغې ټوټې سره چې له ځان سره یې درلود، شهزاده طهماسب ته ولېږه، (تفصیل یې په پنځمه برخه "د شاه اشرف په دوره" کښې وګورئ.)

**۴ - اسد الله ابدالی :**

د عبدالله خان ابدالي زوی، چې یو څه موده یې د هرات د ابدالیانو ریاست په غاړه درلود او د سؤ تفاهم او د پردیو د نفاق اچونې او تحریک له کبله په هغه جګړه کښې چې د فراه په سیمه کښې له شاه محمود هوتک سره وشو، ووژل شو. (تفصیل یې د کتاب په څلورمه برخه کښې راغلی دی.)

**۵ - اسلامخان افغان :**

د شاه اشرف هوتکي له قومندانانو او جنګي مشرانو څخه و، چې د شاه اشرف تر شاتګ وروسته یې په مهماندوست نومي ځای کې د پنځو زرو تنو افغاني عسکرو په ملتیا د نادرشاه له ستر ځواک سره دوه ځلې مقابله او جګړه وکړه، (تفصیل دې د دې کتاب په پنځمه برخه کښې وکتل شي).

**٦ - اسمعیل هوتک :**

د شاه محمود هوتک زوی، چې له اصفهان څخه د شاه اشرف تر وتو وروسته نادري عسکرو ته په لاس ورغی.

**۷ - الله یار اپرېدی :**

د هوتکیانو دورې د پښتو ژبې له شاعرانو څخه و، چې د روب د اروندو سیمو کاکړستان په بوري سیمه کښې یې ژوند کاوه، په (۱۱۰۱ هـ) کال کښې زېږېدلی دی اوتر ۱۱۴۱ هـ کال پوري ژوندی و، د شعرونو یو دیوان یې درلود. د یوې غزلې مطلع یې دا ده:

چې ستا په غم کې بندیوان یم رابهر به نه شم
د بېلتون اوښې تویومه بې پرهر به نه شم

**۸ – امان الله خان:**

د شاه محمود د دورې له مشهورو جنرالانو څخه و، چې د اصفهان په نیولو او فتحه کولو کښي یې لویه او مهمه برخه درلوده او هم د شاه محمود له خوا د قزوین په نیولو مامور شو، چې د شاه اشرف په مرسته د هغه پر فتحه بریالی شوی و، خو د شاه محمود تر مړینې وروسته یې له شاه اشرف سره د نظراختلاف پیدا شو او د شاه اشرف په امر ووژل شو.
(د ده د کارنامو تفصیل دې د دې کتاب په څلورمه برخه کښي او د ده د ژوند د وروستیو ورځو پېښې دې په پنځمه برخه کښي وکتل شي.)

**۹ – امیر الامراء:**

د شاه حسین هوتک له قومندانانو څخه یو تن بهادرخان لقب لري، چې شاه محمود به ده ته (ورور) او عوامو خلکو به ورته (امیر الامراء) وایه (د ده د حال شرحه دې په (ب) ردیف کښي د "بهادرخان" تر سرلیک لاندې وکتل شي.)

**۱۰ – انګو (حاجي):**

حاجي انګو د یحیی خان زوی او د میرویس خان وراره و، چې د آزادۍ ګټلو په ډېروهڅو کي له خپل پلار او تره سره ملګری و، د ده اصلي نوم (محمد خان) دی، خو په پښتو کي په حاجي انګو مشهوره دی. او یو څه موده د جختران حکمران هم و.[1]

**(ب)**

**۱۱ – بابو جان (بابی):**

د کرمخان بابي زوی او د هوتکي دورې یو جنګیالی مېړه و، چې د آزادۍ په لاره کي زموږ له ملي مشر میرویس خان سره ملګری و، په اتغر سیمه کښي اوسېده او د یرغلګرو په وړاندي په زیاتړو جګړو کښي له میرویس خان سره اوږه په اوږه په ډګر کي حاضر و. کله چې د صفوي دولت ظالم حاکم ګرګین په کندهار کښي وژل کېږده، نو بابو جان

(۱) د حیات افغاني، ۲۵۷، ۲۶۴ مخونه.

له خپلو جنګي مېړونو سره د ماشور کلي[۱] له خوا د کندهار پر کلا حمله وکړه او د ګرګین د ساتونکو له لاسه یې حصار خلاص کړ او په خپل لاس کې یې ونیو، تر هغه وروسته د میرویس خان له خوا د کلات د حاکم په توګه وټاکل شو.

په ۱۱۳۴ ه کال کښې چې شاه محمود د اصفهان خوا ته روان و، نو بابوجان له دربیو زرو جنګي مېړونو سره چې هوتکي، توخي، تره کي او اکاخېل وو، کندهار ته راغی او له شاه محمود سره ملګری شو.

د جګړو په ډګرونو کې یې د زړورتیا او مېړانې ازموینه ورکړه. چې د پټې خزانې د لیکوال په وینا داسې ځوانمردي یې وښوده، چې د زمانې رستم د خلکو له یاده ووت.[۲]

سلطان محمد لیکي: بابوجان بابی پر فارس باندې د شاه محمود او شاه اشرف د واکمنۍ او حکومت په زمانه کښې ( د لار او بندر ) سیمې حاکم و او د هوتکي شهنشاهۍ تر سقوط وروسته کندهار ته راغی. خو جهانکشای نادري دغه نوم د باروخان په توګه خوندي کړی دی. کله چې نادرافشار له هراته کندهار ته مخه کړه او د کرمان حاکم امام ویردي بېګ یې پر ګرشک او د بُست پر کلا باندې په یرغل او حمله مامور کړ. نو شاه حسین خپل لښکر د بابوجان بابي په مشرۍ د دفاع لپاره وټاکه. له نادري عسکرو سره یې مقابله او جګړه وکړه او هغوی ته یې ماتې ورکړه.[۳]

سربېره پردې چې بابوجان بابی د توري سړی و له قلم څخه هم بې برخې او بې نصیبه نه و. شعري قریحه یې لرله او په پښتو یې شعر وایه، په ۱۱۲۹ ه کال کې یې د ( شها او ګلان ) مشهوره کیسه په پښتو نظم

(۱) ماشور: دکندهار زاړه ښار په جنوب او د اوسني ښار په جنوب لویدیزه څنډه کې تخمیناً د اوو میلو په واټن کې یو پروت کلی دی او د مغلو په دوره کې د کندهار د پخوانۍ کلا جنوبي دروازه به یې د ماشور دروازه بلله ( اکبرنامه ابوالفضل، لومړی ټوک).
(۲) پټه خزانه، ۱۳۵ مخ.
(۳) د پټې خزانې تعلیقات، ۱۵۵ مخ. تاریخ سلطاني، ۸۵ مخ.

کړه. او د ( قصص العاشقين ) نوم يې ورباندي کښېښود.[۱]

د ده د ميني يوه دوه ييزه(مثنوي) د پټي خزانې په ۱۳۷ مخ کې راغلې ده.

### ۱۲ – بارو خان :

د هوتک بابا پلار او د هوتکيانو قبيلې مشر دی، چي د دوو لړيو په واسطه غلجي بابا ته رسېږي، چي د غلجيانو قبيله ورته منسوبه ده. په دې توګه: بارو د تولر، يا توران زوی او توران د غلجي زوی دی.[۲]

### ۱۳ – باز توخی :

د هوتکي دورې له پوهانو او پښتو شاعرانو څخه و، په ۱۱۴۱هـ کال يې په اتغر سيمه کښي ژوند کاوه. د علومو مبادي يې په هند کې زده کړي وو او په فقه کي يې ډېر معلومات درلودل او د منطق او حکمت تدريس يې کاوه. د پټي خزانې د ليکوال محمد هوتک ملګری او همراز و. شعرونه به يې په ملي وزن ويل، د يوې غزلې مطلع يې دا ده:

راسه پر څنګ، راسه ليلی، ته مي نږدې سه له دل
يمه زخمي، چي مي ونه نجتې په خوږ زړه منګول[۳]

### ۱۴ – بائيخان :

د سلطان ملخي( د ميرويس خان مورني نيکه) زوی چي د پلار تر مړينې وروسته يې پر کلات او د هغه پر شاو خوا واکمني کوله او د ترنک سيند پر غاړه د کلات او جختران په کليو کښي يې ژوند کاوه او په پای کي په يوه جګړه کي ووژل شو.

### ۱۵ – بهادر خان :

په کندهار کښي د شاه حسين هوتکي د ځواکونو سپه سالار او د شال او ړوب فتحه کوونکی هم دی. پادشاه ده ته ( ورور ) وايه او په عوامو خلکو کي د ( امير الامراء ) په نامه مشهوره و. د پټي خزانې ليکوال

(۱) پټه خزانه، ۱۳۷ مخ.
(۲) حيات افغاني، ۲۵۶ مخ. خورشيد جهان ۲۱۰ مخ.
(۳) د پټي خزانې ۱۰۵ – ۱۰۷ مخونه.

دی "د زمانې د لويانو مشر" ( صدر اکابر دوران ) او د ( خان عاليمکان ) په لقبونو ياد کړی دی او د ميرويس خان په زمانه کښې يې هم د آزادۍ دلاري مجاهدينو په لومړۍ ليکه کې موقعيت درلود او په لومړۍ ملي جرګه کښې يې چې د ميرويس خان له خوا د تېرې کوونکو دليرې کولو لپاره جوړه شوې وه، د قوم د يوه استازي په توګه ګډون کړی و. ( د دې موضوع تفصيل دي د دې کتاب په دويمه برخه کې ولوستل شي.) سربېره پردې بهادرخان يو غريبپال او علمدوسته سړی و. د عالمانو او اديبانو ډېر درناوی يې کاوه او غريبانو او مسکينانو ته به يې ډېره ګټه رسوله او د هغوی زوړته به يې ساتل، هيڅوخت به د ده مجلس له پوهانو او شاعرانو څخه تش نه و، مېلمستياوي، بخششونه او انعامونه به يې ورکول. پخپله ده هم په پښتو ادب کې لاس درلود. او شعرونه به يې په ملي وزنونو ويل. د يوې غزلې مطلع يې دا ده:

بېلتون دي زور دی تر لېمو مې سنهار نم څاڅي لکه شبنم څاڅي
دا سره ياقوت مې په لمن کې ستا په غم څاڅي په غم الم څاڅي
ګوره ليلی باران د اوښو ستا په چم څاڅي څنګه پر چم څاڅي

( پټه خزانه، ۱۲۵ مخ )

## ( پ )

### ۱۶ - پير افغان :

د هوتکيانو دورې د يو پوه او روحاني شخص ملا پير محمد مياجي لقب دی. چې پير محمد مياجي دي ولوستل شي.

### ۱۷ - پير محمد ( مياجي ) :

ملا پيرمحمد مياجي د ملا سرور زوی او د هوتکي دورې له مشهورو عالمانو او روحانيونو څخه و. چې د آزادۍ په ټولو هڅو کې يې له ميرويس خان سره ګډون درلود، په لومړۍ ملي جرګه کښې هم شامل و وروسته تر هغه چې ميرويس خان مړ شو او زوی يې شاه محمود اصفهان ته لاړ. دی يې هم د خپل مرشد او مشاور په توګه اصفهان ته وغوښت، ملا پيرمحمد مياجي په اصفهان کې په مذهبي تبليغاتو پيل وکړ او د هغه ځای عالمان يې په دليلونو سره قانع کړل او د روم

پوهانو هم ورته ( پیر افغان ) لقب ورکړ.

د شاه اشرف په وخت کښي يې هم د پاْشاه د مرشـد او مشاور په توګه ډېر قدر او عـزت درلـود او شاه تـه بـه يـې ښي او ګټوري مشـورې ورکولې.

په ۱۱۴۳ هـ کال کښي چي شاه اشرف شېراز خوشي کړ او کندهـار ته راروان و، د شېراز په درې فرسخی کښي يې د ( فساد ) پله ساتنه پر خپله غاړه واخيسته او له نادري لښکرو سره يې مقابله او جګړه وکړه، تر دې چي په همدغه ځای کي د نورو هېوادوالو د ساتني په لار کـښي د يرغلګرو لـه خوا ووژل شو.

پير افغان ليکوال او شاعر هم و. دوه کتابونه يې ليکلي دي، چـي يو يـې د اخلاقـو د علـم ( افضـل الطرايـق ) او بـل يــې ( القرايـض فـی ردالروافض ) نومېږي او دواړه په پښتو ژبه او دويم کتاب يې نظم دی.[1]

﴿ ج ﴾

### ۱۸ – جعفر خان سدوزی :

د ميرويس خان خسر او د سـدوزي کـامرانخېلو قبيلـې لـه مشـرانو څخه و، چي د کلات او کندهار ترمنځ يـې په ښارصفا کي ژوند کاوه. کلـه چي مړ شو، نارينه وارث يـــې نـه درلـود چـي د هغـه قومـي رياسـت او د زمينداری چاري يې اداره کـړي وای، نـو د ده مېرمنـي خپلـه لـور چـي (خانزاده) نومېدله، ميرويس خان ته په نکاح کړه ( تفصيل دې د دې کتـاب په دويمه برخه کي وکتل شي).

﴿ خ ﴾

### ۱۹ – خانزاده :

د جعفرخان سدوزي لور او د ميرويس خان ښځه وه( د دې کتــاب دويمي برخي ته دي رجوع وشي.)

(۱) د ده د شعرونو بېلګه د پټې خزانې په ۱۳۱ مخ کي راغلې ده.

## د

### ۲۰ - داؤدخان هوتک :

د قادرخان زوی او د پټې خزانې د لیکوال محمد هوتک پلار او د میرویس خان له جنګي سالارانو څخه و. چې په (۱۰۲۹ هـ) کال د کندهار په کوکران سیمه کښې زیږېدلی دی. دوديز علوم یې په روب، دېره جاتو او پښور کې لوستي دي، چې د هغه وخت د فصحاوو په ډله کښې مشهوره شو، وروسته بیا د ګیرګین د وژل کېدو پر وخت د مجاهدینو په ډله کښې شامل شو او د آزادۍ په زیاترو مجاهدو او جګړو کښې له میرویس خان سره ملګری و.

په ۱۱۲۰ هـ کال چې یرغلګرو پر کندهار حمله وکړه داؤدخان د میرویس خان په استازیتوب فراه، سیستان او ګلستان ته لاړ او د هغه ځای د نورزیو، بارکزیو او ساکزیو له قبیلو څخه یې ډېر افغانان له ځان سره همفکر وموندل او په ګډه یې د صفوي دولت د سرلښکر خسروخان پر عسکرو باندې چپاو وروړ، چې په هغو جګړو کښې د میرویس خان د ملي ځواکونو د یوې برخې مشري د داؤدخان پر غاړه وه.

داؤدخان په شعر ویلو کې هم لاس درلود. په پښتو یې شعرونه ویل، دغه تجنیس لرونکې رباعي یې دده ده:

چې د چا په زړه کښې اور د میني بل سي    په اوربل یې لمبې ګډې حال یې بل سي
اور د میني که مري د زړه له مېني    د اوربل مینه که تل د زړه په تل سي(۱)

### ۲۱ - دُرخو:

د میرویس خان خوابنې او د جعفرخان سدوزي ښځه وه، چې په ښارصفا کښې یې ژوند کاوه او د خپل مېړه تر مړیني وروسته یې میرویس خان په زومولۍ وټاکه.

### ۲۲ - دولتخان :

د اعلیحضرت احمدشاه بابا نیکه او د هوتکیانو په زمانه کښې د ابدالي قبیلې له رئیسانو څخه و، چې له صفوي یرغلګرو سره د اختلاف او جګړې له کبله په کندهار کښې د صفوي دولت د حاکم ګرګین تر غوسې لاندې راغی او تر ډېرو مبارزو وروسته په پای کښې په چل او ټګۍ

---

(۱) میرویس، ۱۱۳ مخ.

سره د ګرګين لاسته ورغی او له خپل زوی نظرمحمد خان او مزدور فقير نومي سړي سره د ګرګين په امر ووژل شول. يو زوی يې زمانخان (د احمدشاه بابا پلار) کرمان ته تبعيد کړای شو او بل زوی يې رستمخان د قوم مشري او رياست پر غاړه واخيست او له يرغلګرو سره يې په مقابله پيل وکړ. (د دولتخان د حال مفصل بيان د ابداليانو په دوره پوري اړوند دی).

﴿ ر ﴾

### ۲۳ – رستمخان:

د دولتخان ابدالي (د احمد شاه بابا د نيکه) زوی و. وروسته تردې چې دولتخان د ګرګين په امر په کندهار کښي په شهادت ورسېد. د ابداليانو د قوم رياست يې پر غاړه واخيست او د تېري کوونکو پرضد د خپل پلار په شان په مقابله او مبارزه بوخت شو، خو په پای کښي دی هم د تېري کوونکو په لاس ورغی او د ګرګين په امر ووژل شو. او د آزادۍ په لاره کښي قربان شو.

### ۲۴ – رېديخان مومند:

د غياث خان زوی او د مسعودخان مومند لمسی و. چې د کندهار مومندو کلي[1] د ده نوم ته منسوب دی.

رېديخان د هوتکي دورې له لويو اديبانو او پوهانو څخه و. د بلاغت په علومو ښه پوهېده او د فقهې، تفسير او صرف و نحوې د علومو تدريس يې کاوه.

په ۱۱۳۶ هـ کال اصفهان ته لاړ او هلته يې له شاه محمودافغان سره مجلسونه وکړل. کله چې بېرته کندهار ته راغی. د ميرويس خان او شاه محمود د آزادۍ غوښتني پېښي او جنګونه يې په يو کتاب کي په څلورو زرو بيتونو کښي په نظم بيان کړل. او د هغه نوم يې (محمود نامه) کېښود، چې شاه حسين د هغه له کبله ورته يو زر طلاوې

(۱) مومند يو کلی دی چې د اوسني کندهار د ختيځي خوا په شپږ ميلۍ کې د کابل پر سړک باندي پروت دی او تر اوسه په همدې نوم يادېږي.

بخشش او انعام ورکړ او ده هغه پيسې د هغې سخا او جواديت په وجه چې درلوده يې، په څو ورځو کښې ټولي په دوستانو او ملګرو باندې وخوړ لې(۱)

رېديخان پر ( محمود نامه ) سربېره د غزلو، مثنوي او رباعياتو يو بشپړ دېوان هم درلود. خو د ده محمود نامه کتاب په افغانانو کښې منلی او ګران و او يوه برخه يې چې اصفهان او له هغه ځايه حج ته د ميرويس خان تګ او په مدينه منوره کښې د هغه مناجات، خوب ليدنه او کندهار ته د ده بېرته راتګ او د لومړنی ملي جرګې جوړېدل او د ګرګين وژل کېدل پکښې بيان شويدي، د پټې خزانې په کتاب کښې هم راغلې ده.

## ﴿ ز ﴾

### ۲۵ – زبردست خان:

د شاه محمود د دورې له زړورو قومندانانو څخه و، وروسته تر هغه چې د شاه محمود يو بل قومندان نصرالله ګبر د شيراز په جګړه کې ډېر سخت ټپي شو. نو زبردست خان د هغې جبهې د ټولو ځواکونو مشري پر غاړه واخيسته او تر اتو مياشتو محاصرې وروسته يې شيراز فتحه کړ. (تفصيل يې ددې کتاب په څلورمه برخه کښې راغلی دی).

### ۲٦ – زعفران ( ملا ):

ملا زعفران تره کی له جيدو عالمانو او د شاه حسين د دربار له سياسي مشاورينو او د شاه حسين د زوی "محمد" استاد و. د پټې خزانې ليکوال هغه د ( عالم جامع الکمال ) او د ( مدارالمهام او صدرالا فاضل ) په لقبونو ياد کړی دی. په حکمت، رياضي او طب کښې استاد و او په طب او حکمت کې يې د ( ګلدسته زعفران ) په نامه يو کتاب هم ليکلی دی.

سلطان محمد ليکي: ملا زعفران د لومړي ځل لپاره تر ۱۱۴۳ هـ کال وروسته د شاه حسين افغان د سفير په توګه نادرشاه ته لېږل شوی و. همدا راز کله چې نادرشاه په هماغه کال هرات محاصره کړ. ملا زعفران بيا د سفير په توګه نادرشاه ته ورغی او د صفوي

(۱) د پټې خزانې ۱۳۷ مخ.

کورنۍ ځيني بنديان يې چي له شـاه حسين سـره بنديـان وو، د هوتکـي کورنۍ له هغو بنديانو سره چي له نادرشاه سره بنديان وو، تبادله کړل.[۱]

شېرمحمد ليکي: ملا زعفران د ۱۱۴۳ ﻫ کـال پـه امامـانو (محـرم) مياشت کښي د اعليحضرت شاه حسين له خوا په سنندج نومـي ځای کـښي نادرشاه ته لېږل شوی و.[۲]

له دې څخه ښکاري چي ملا زعفران يوازي د شاه حسين د دربار جيد عالـم نه و، بلکي د هغي دورې په هېوادنيو او سياسي کارونو کي يې هم لويه برخه درلوده.

سربېره پردې ملا زعفران پښتو شعرونه هم ويل او هغه رباعي چـي ږوب او شال د فتحې په هکله في البداهه يې د شاه حسـين پـه حضـور ويلې ده د دې کتاب په شپږمه برخه کي راغلې ده.

## ۲۷ - زعفران ( ملا ):

د هوتـکي دورې د پښتو له بهير څخه ښکاري، چي د شاه محمود افغان په دربار کښي د ملا زعفران په نوم يو بل عالـم هم موجود و، چي د (جهانکشهای نادري ) د کتاب ليکوال يې يادوي.

دغه کس په شيراز کښي د افغاني ځواکونو د مـاتي او سـقوط پـه ورځو کښي د شاه اشرف افغان لـه خـوا د سيدال خـان نـاصر پـه ملگرتيـا نادرشاه ته د سولې يو وړانديز يووړ. خو وروسته تردې چي موافقه ترلاسه نه شوه، په هغه جګړه کي چي د افغاني او نادري ځواکونو ترمنځ وشوه، دی د نادرشاه د يرغلګرو ځواکونو لاسته ورغی، کله چي دی يـې اصفـهان تـه بېوه، نو د شرافت مـرګ يـې د ذلـت او اسـارت تـر ژونـدون غـوره گانه د (لشنی) خانه نشين نومـي سـيند لـه پلـه څخـه يـې ځان پـه سـيند کـښي وغورځاوه. او خپل ژوند ته يې خاتمه ورکړه.[۳]

(۱) تاريخ سلطاني، ۸۷ مخ. د پټي خزانې تعليقات، ۲۵۴ مخ .
(۲) خورشيد جهان، ۱۴۸ مخ .
(۳) جهانکشای نادري .

**۲۸ – زمانخان :**

د احمد شاه بابا پلار په هوتکـي دوره کښې لـه ابـدالي رئيسـانو څخه و، چې د صفوي دولت د حاکم ګرګين په امر د ده د پلار دولتخان تر وژل کېدو وروسته له کندهـار څخـه کرمـان تـه تبعيـد شـو. ( د ده د حـال مفصله شرحه د ابداليانو په دورې پورې اړوند ده.)

**۲۹ – زينب :**

بي بي زينب د ميرويس خان پوهه او عالمه لور وه، د فقهې علـم، اسلامي احکام او د پښتو او فارسي دوديز کتابونه يې د کندهار له مشهور او معروف عالـم او د ميرويس خان لـه کورنـي او خصوصـي ښوونکـي ملانـور محمد څخه زده کړل او وروسته يې بيا پخپله د حرم او کورنـۍ د فـاميلي خلکو د معلمۍ دنده پر غاړه واخيستله. د پلار تر مړينې وروسته يې د هـېواد په چارو کې هم لويه برخه درلوده او وروڼو به يـې لـه دې څخـه مشـورې اخيستلې. په تېره بيـا چـې شـاه محمـود اصفهان تـه لاړ او شـاه حسـين د سلطنتي چارو واګې په لاس کښې ونيولې، د پټې خزانې د ليکوال پـه وينـا تل به يې د هېواد د چارو ستونزې پخپله صائبه رأيه حلولې او شاه حسـين به هم د دې مشورې او لارښوونې اورېدلې او منلې.[۱]

د نادرشاه له خوا د کندهار د محاصرې پر وخت دغه خور له خپل ورور سره اوږه په اوږه له ښاره دفاع کوله او کله چې محاصره ختمـه شـوه، نو تر ټولو مخکې مېرمن زينب له يوې ډلې افغاني مشرانو سـره نادرشـاه تـه ورغله او له هغه سره يې د متارکې او شرطونو په هکله خبرې وکړې.[۲]

سربېره پردې مېرمن زينب له ادبياتو سره هم ډېره مينه درلـوده او په پارسي او پښتو به يـې پخواني تدوينونه او کتابونه لوستل او دې هم پـه پښتو ژبه شعر وايه، هغه مرثيه چې دې د خپل ځوانيمرګ ورور شاه محمــود د مړينې له کبله په ملي وزن ويلې ده، د دې د افغـاني احساسـاتو ډېره ښه بېلګه ګڼل کېږي، چې دلته يـې يو څو بندونه را اخلو:

---

(۱) د پټې خزانې، ۱۸۰ مخ.

(۲) تاريخ افاغنه، د سيد ظهور الحسن موسوي ليکنه، ۵ مخ. جهانکشای نادري.

دا روڼ جهان راته تورتم دی نا
هوتك غمجن په ډېر ماتم دی نا
چي شاه محمود تېر له دنيا سو نا
ځوان و، مېړه د توري جنګ و نا
دښمن له ده په وينو رنګ و نا
افسوس چي مرګ د ده پخوا سو نا
اصفهان، پاته تاج نسکور عالمه
د پښتون لمر سو تياره تور عالمه
چي پاچا ولاړ پښتون ګدا سو نا
لښکر سوخپور پښتون ولاړ دی اريان
پاته سو تخت و تاج د ټول اصفهان
وايي پښتون اوس بې پاچا سو نا
محموده ځوان وې ولې ولاړې له ما
اصفهان ولي پاته سو نا له تا

زړه د ښلتون په تېغ کرم دی نا
د پاچهي تاج مو بزهم دی نا
کندهار واړه په ژړا سو نا
ولاړ د کام په نام و ننګ و نا
پر ميدان شېر و يا پلنګ و نا
کندهار واړه په زړه سو نا
چي شاه محمود سو نن په ګور عالمه
راته دښمن به کا پېغور عالمه
کندهار واړه په ژړا سو نا
په خاوروخای‌کا شاه محمودعاليشان
زړه يې راسوړ سوه کا خوښي دښمنان
کندهار واړه په ژړا سو نا
له تخت و تاجه ته پرخه سوې جلا
سر دي راپورته کړه چي څه کړي اعدا

دښمن ولاړ بيا شا و خوا سو نا
کندهار واړه په ژړا سو نا.

د دې مرثيې پاتي برخه د پټي خزانې په ۱۸۷، ۱۸۹ او ۱۹۱ مخونو کښي لوستلای شئ.

(س)

### ۳۰ – *سيدال خان ناصر*:

د هوتکي دورې له مشهورو او زړورو سپه سالارو څخه و. چي د هوتکي دورې د آزادی تحریک له پیله یې د هوتکیانو د سلطنت د سقوط تر وروستۍ مرحلې پوري له تبري کوونکو سره جګړې کړي دي.

د پلار نوم يې ابدال خان و، چي په پيل کښي وازې خوا ته په اړوندو سيمو ( د مقر د جنوب غرب "آب ايستادې" ته نژدې ) په ډيله نومي خای کي اوسېده. وروسته چي بيا کله سلطان ملخي توخي خپلواکي لاسته راوړه او له غزني څخه يې تر جلدکه پوري

یو خپلواک حکومت ټینګ کړ، د ناصرو[1] د باړیزي له څانګې او د سیدالخان له پلار ابدالخان سره له ډېلي څخه اتغر سیمي ته لاړ او د صفوي دولت له تېري کوونکو سره یې په مبارزو پیل وکړ. کله چې د میرویس خان له خوا ګرګین وژل کېده، سیدال خان ناصر د افغاني ځواکونو د سپه‌سالار په توګه ټاکل شوی و.[2] وروسته تر هغه سیدال خان د هوتکي دورې په ټولو جګړو کښې لویه برخه درلوده او تاریخ کښونکو په اکثرو هغو جګړو کښې چې د میرویس خان له زمانې تر ( ۱۱۵۰ هـ کال ) پورې په دېرشو کلونو کښې دننه زموږ په هېواد کښې او له هغه دباندې شوې دي د ده نوم د افغاني ځواکونو د یو نظامي مشهور جنرال په توګه یاد کړی دی. د پټې خزانې کتاب په شهادت کله چې د صفوي دولت ځواکونو د ګرګین د مړینې د انتقام اخیستلو لپاره پر کندهار یرغل وکړ. همدغه سیدال خان ناصر و، چې له تېري کوونکو سره یې مقابله وکړه او څو ځله یې هغوی ته ماتې ورکړه او د میرویس خان په دوره کې په ټولو جګړو کې بریالی او غالب شوی دی.[3]

د میرویس خان تر مړینې وروسته له شاه محمود سره اصفهان ته لاړ او هلته هم د شاه محمود د عسکرو له مشهورو جنرالانو څخه شمېرل کېده. او د اصفهان په نیولو او فتحه کولو کښې یې ستره برخه درلوده.

له شاه اشرف سره یې هم په ټولو جګړو کښې ملګرتیا وکړه او شاه اشرف په ټولو جګړو کښې د افغاني ځواکونو مقدمة الجیش و. له هغو مشهورو جنګونو چې د نادري او افغاني ځواکونو ترمنځ د سیدال خان تر قوماندې لاندې وشول: د ( مهماندوست ) مشهوره جنګ چې د ( ۱۱۴۲ هـ کال د لومړۍ خور په میاشت ) او ( مورچه خورت ) جګړه چې (د همغه کال په دویمه خور "ربیع الثاني" کښې ) او د ( زرقان ) او ( پل فساد ) جنګونه په ( د همغه کال د وروستۍ خور "جمادي الاخر"

---

(۱) *ناصر*: د افغان د غلجیو قبیلې مشهوره څانګه ده، چې په درېیو برخو وېشل کېږي. سپین ناصر، سور ناصر او تور ناصر. د باړیزیو څانګه سور ناصر ته منسوبه ده.

(۲) ، (۳) پټه خزانه، ۱٦۹ مخ.

په ۱۳مه) شوي دي. (چي تفصيل يې د دې کتاب په پنځمه برخه کښي راغلی دی).

د شاه اشرف تر دوری وروسته يې ځان په کندهار کښي شاه حسين ته ورساوه او له دغه ځايه يې د يرغلگرو پرضد د دفاع لپاره ملا وتړله.

په ۱۱۴۳ ه کال په شوال مياشت کښي چي نادرشاه بيا د هرات پر ابداليانو بريد وکړ او ابداليانو له شاه حسين ځخه مرسته وغوښته، شاه حسين، سيدال خان ناصر له څو زرو عسکرو سره د هرات د هېوادمينو خلکو د مرستي لپاره ولېږه.[1]

په ۱۱۴۹ ه کال کښي چي نادرشاه کندهار ښار محاصره کړ او د خپلو عسکرو يوه برخه يې د کلات کلا د نيولو لپاره ولېږله، د شاه حسين له خوا سيدال خان ناصر د شاه حسين له زوی سره چي محمد نومېده د دې کلا د دفاع لپاره ماموره شو. ان چي پخپله نادرشاه د سيدال خان د مقابلې لپاره مجبوره شو. سيدال خان د خپل ځواک او طاقت تر پايه پوري له کلات ځخه دفاع وکړه. خو په پای کي د مقابل لوري د ډېروالي او ځواک له کبله د شاه حسين له زوی محمد سره له کلات کلا ځخه دباندي راووت او لاس په لاس له نادري لښکر سره وجنگېد او د نادري ځواکونو په لاس کښي گير شو او له دې کبله د هوتکيانو د آزادۍ غوښتني د تحريک له پيل ځخه د يرغلگرو ځواکونو په مقابل کښي پورته شو او په مېړانه يې دفاع وکړه او هيځکله يې د پرديو په مقابل کي د تسليم سر نه و ټيټ کړی، د نادرشاه په امر له دواړو سترگو محروم کړای شو او د ده په سقوط سره د هوتکيانو شهنشاهی هم سقوط وکړ.

وايي کله چي سيدال خان د وطن غوښتني په لاره کښي خپلي سترگي له لاسه ورکړې. د خپلي کورنۍ له ځينو غړو سره د کابل د شمالي سيمي د کوهدامن شکردرې ته راغی او اوس د ده مزار د شکردرې د سياه سنگ په هديره کښي دی. له ده نه د شېرمحمد خان په نوم يو زوی

(۱) جهانکشای نادري، ۱۸۱ مخ. تاريخ سلطاني، ۸۸ مخ.

پاتې شو، چې اولاده یې تر اوسه پورې موجوده ده[۱]. سیدال خان ناصر پر پوزې قابلیت سربېره یو پوه سړی هم و. د پټې خزانې د لیکوال په وینا د فقهې، تفسیر، فصاحت، صرف و نحو علوم او د پارسي دوديز کتابونه یې په ښوانۍ کې ویلي وو او له پښتو شعر سره یې ځانګړې مینه درلوده او پخپله یې هم پخوا له دې چې له پردیو سره د مقابلې او مبارزې میدان ته راووزي. پښتو شعر یې وایه. د ده د شعرونو بېلګه د پټې خزانې په (۱۷۱ او ۱۷۳) مخونو کښې راغلې ده.

## ﴿ ش ﴾

### ۳۱ - شاه اشرف

د میرویس خان وراره و، چې د شاه محمود تر مړینې وروسته په اصفهان کښې د افغانانو سلطنت په ده پورې تعلق ونیو. ( او د دې کتاب پنځمه برخه په ده پورې ځانګړې شوې ده).

### ۳۲ - شاه عالم :

د محمد علیخان زوی او د سلطان ملخي وراره و، چې یو څه موده یې د کلات د افغانانو قومي ریاست او حکمراني په لاس کښې وه.

### ۳۳ - شاه محمود

د میرویس خان زوی، چې اصفهان یې ونیو او فتحه کړ او د افغانانو سلطنت یې هلته تاسیس کړ ( او د دې کتاب څلورمه برخه د ده د سلطنت په دورې پورې مربوطه ده.)

## ﴿ ښ ﴾

### ۳۴ - ښالم خان :

د میرویس خان ښاغلی پلار و. چې مفصل بیان یې د دې کتاب په لومړۍ برخه کښې لیکل شوی دی.

## ﴿ ع ﴾

### ۳۵ - عادلخان :

حاجي عادلخان توخی د میرویس خان ماما و او د کلات په شا وخوا کښې اوسېده او د سیدال خان ناصر د پلار ابدالخان ناصر په

---

(۱) د پټې خزانې تعلیقات، ۲۵۷ مخ .

مرسته او همکاري یې له صفوي یرغلګرو خواکونو سره چي پر کندهار ښار یې واکمني درلوده، جګړې کړي دي او تر پایه پوري یې پرې نه ښودل چي پردي خواکونه کلات ونیسي او حاکمیت پرې وکړي.

### ۳٦ - عبدالحکیم کاکړ:

میا عبدالحکیم د افغانانو له مشهورو اولیاوو او عارفانو څخه و. چي په صوفیانه طریقت کښي مشهوره و او ډېر شاګردان یې هم شهرت لري.

دغه عارف د ( ۱۱۴۰ ه ) کال په حدودو کښي په کندهار کښي ژوند کاوه او تر ( ۱۱۵۰ ه ) کال پخوا د شاه حسین هوتک د سلطنت په زمانه کښي له کندهاره کاکړستان ته لاړ او د ده مزار په تل او چتالي نومي خای کښي د خاص و عام زیارتګاه ده.[۱]

د کندهاز په عوامو کښي دا خبره مشهوره ده چي له کندهاره د ده تګ د هغه د نظري اختلاف له کبله و، چي د ده او شاه حسین ترمنځ پیدا شوی و.

### ۳۷ - عبدالرسول هوتک:

د محمد خان ( د میرویس خان د وراره ) زوی و، چي په کلات کښي د خپل ورور عبدالغفور د حکومت پرمهال یې په شیبار نومي خای کښي د نادرشاه له خواکونو سره په جنګ لاس پوري کړ او خپلي میړانې یې وښودلې. [۲]

### ۳۸ - عبدالعزیز هوتک:

د میرویس خان ورور، چي د دې کتاب درېیمه برخه د ده په ژوند پوري مربوطه ده.

### ۳۹ - عبدالغفور هوتک:

د محمد خان ( د میرویس خان د وراره) زوی و، چي د نادرشاه د خواکونو د یرغل پر وخت د کلات حکومت د ده په لاس کښي و.[۳]

---

(۱) د پټي خزانې ۱۵۳ او ۱۵۴ مخونو لمنلیک.

(۲) حیات افغاني، ۳۵۷ - ۲۶۴ مخونه

(۳) حیات افغاني، ۲۵۷ - ۲۶۴ مخونه.

**۴۰ - عبدالقادر خان هوتک :**

د میرویس خان ورور و، چي لـه بـده مرغـه د ده د ژونـد د حـال شرحه په لاس رانغله.

**۴۱ - عبدالله خان :**

د حیات سلطان ( مشهور په سلطان خودکه ) زوی د ابدالي قبیلـې له قومي مشرانو څخه و، چي په ملتان کښي اوسېده او وروسته تـر دې چـي کندهار د صفوي دولت له سلطې څخه آزاد شو او د هرات ابدالیانو هــم د آزادۍ غورځنګ پیل کړ. له خپل زوی اسدالله خان سره له ملتان څخــه د هرات خوا ته راغی. خو په لاره کښي د صفوي یرغلګر لښکر قوماندان خسرو خان چي د کندهار خوا ته روان و. عبـدالله خـان د دې مقصـد لپـاره لـه خان سره ملګری کړ، چي د میرویس خان په وړاندي یـې په مبــارزه کــښي شامل کړي. خو دی چي یو ځیرک، هېوادپاله او قوم غوښتونکی سړی و، نو وروسته تر دې چي یـې وخت پیدا کړ، پرته له دې چي له مـیرویس خـان سره جنګ وکړي. هرات ته لاړ. ( تفصیل یـې د دې کتاب په دویمـه برخـه کښي راغلی دی. )

**۴۲ - عبداللطیف اڅکزی :**

د محمد هوتـک په وینا د شاه حسین د دورې په ټولـو فـاضلانو او ظریفانو کښي وتلی سړی و.

د پلار نوم یـې غلام محمد او اصلي هېواد یـې بوستان[1] و. چــي وروسته کندهار ته راغی او په ماشور کلي کښي یـې استوګنه غوره کړه.

عبداللطیف اڅکزی په ۱۱۰۱ هـ کال زېږېدلی دی او د هغه وخت پر دوديزو علومو سربېره یـې قرآن کریم هم په یاد کړی و.

په پښتو ژبه یـې شعر وایه، شعرونو یـې ډېر ظرافت درلود او زیاتره پند او نصیحت یــې د ظرفیـت پـه بــڼه راوړل او فی‌البدیهـه او ارتجـالي شـعرونه یـې هـم ډېر ویـل. دشـعر بېلــګه یـــې پـه پــټه خزانــه کــښي

(۱) بوسـتان د بلوچسـتان د کوټې پـه شمال کښي یـو ځای دی، چي د ۲۰ میلـو پـه فاصله پروت دی، چي د اڅکزیو استوګنځی دی.

راغلي ده.

۴۳ – *عزيز خان نورزی* :

د هوتکي دورې له خانانو څخه و، په لومړنۍ ملي جرګه کښې يې چي د ميرويس خان په حضور کي د پرديو د تسلط غورځولـو لپاره جوړه شوې وه، د خپل قوم په استازيتوب ګډون کړی و. د حال مفصله شرحه يې په لاس نه ده راغلې، يوازي د رېديخان مومند له محمودنامې څخه دومره برېښي چي د فراه په ( دلارام ) کي اوسېده.[1]

﴿ غ ﴾

۴۴ – *غياث خان مومند* :

د ميرويس خان له خصوصي ملګرو څخه و. رېديخـان مومنـد يـې زوی دی، چي د هغې دورې له مشهورو شاعرانو او فاضلانو څخه و، د پټې خزانې ليکوال دی د ( افصح دوران ) په لقب ياد کړی دی.

﴿ ف ﴾

۴۵ – *فقير خان* :

د دولتخـان ( د احمـد شـاه بابـا نيکـه ) د زوی نظرمحمـد خـان ابدالي نوکر او د آزادۍ د لاري سرتېر و، چي د ګرګين په امـر پـه کندهـار کښي له خپل ورور سره يو ځای شهيد کړای شو.

﴿ ق ﴾

۴٦ – *قادرخان هوتـک* :

د پټې خزانې د ليکوال محمد هوتـک نيکه و، چي په ( ۱۰۵۸هــ ) کال په ۷٦ کلنۍ کي کندهار کي مړ شوی او د کندهـار پـه کوکـران کلـي کښي ښخ دی.

﴿ ک ﴾

۴۷ – *کرمخان* :

زموږ د ملي مشر ميرويس خان نيکه و، د ده د حال شرحه لاسته نه ده راغلې.

(۱) پټه خزانه ۱۴۷ مخ.

﴿ گ ﴾

۴۸ - گلخان بابړ:

په هوتکي دوره کښي د بابړي قوم له مشرانو څخه و او د هوتکیانو د ملي پاڅون په لومړنۍ جرګه کښي یې د خپل قوم د استازي په توګه ګډون کړی و، یوازي د رېدیخان مومند د محمود نامې کتاب د ده نوم یاد کړی، په نورو ماخذونو کي نه دی ترسترګو شوی.

﴿ م ﴾

۴۹ - محمد:

د شاه حسین هوتک د زوی نوم و. چي متداوله علوم یې د هغې دورې له مشهور عالم ملازعفران تره کي څخه زده کړل او د کندهار ښار د محاصرې پر وخت د خپل پلار له خوا له سیدال خان سره د نادري عسکرو په وړاندي د کلات کلا د دفاع او ساتني لپاره لېږل شوی و، چي په پای کښي د جګړې په ډګر کي د نادرشاه د پوځیانو لاسته ورغی. او وروسته بیا له خپل پلار سره مازندران ته تبعید کړای شو. ( تفصیل دي د دې کتاب په شپږمه برخه کي وکتل شي .)

۵۰ - محمد:

محمد هوتک د داؤدخان زوی او د قادرخان لمسی، د شاه حسین د دربار ادبي لیکوال و، چي د شاه حسین په امر یې د پټي خزانې ارزښتمن کتاب لیکلی دی.

د ده د کورنۍ اصلي استوګنځی په مرغه کښي و. خو نیکه یې قادرخان کندهار ته راغلی و، په کوکران کلي کښي یې استوګنه غوره کړه.

محمد هوتک د ۱۰۸۴ هـ کال د بزرګي (رجب المرجب) میاشتي په ۱۳ مه ورځ په کوکران کښي زېږېدلی دی. متداول علوم یې لکه: فقه، اصول، تفسیر او ادبي فنون لکه: قافیه، عروض، بیان معاني او نور تر ۱۸ کلنۍ پوري له خپل پلار څخه زده کړل او د پلار ترمړینې وروسته د شاه حسین په غوښتنه کندهار ښار ته لاړ او د شاه حسین په خدمت کي شو.

لکه چي پخپله لیکي عمر یې په مطالعه او لیکنو کښي تېر شوی او د پټي خزانې پر مهم کتاب سربېره درې نور کتابونه هم لري. یو

یې د فصاحت په علومو کښي د ( خلاصة الفصاحت ) په نوم او دویم یې په طب کښي د ( خلاصة الطب ) په نوم او دریم یې د ده د شعرونو مرتب دېوان دی، چي غزلي، قصیدې او رباعیات په کي شته.

په ۱۱۳۹ ﻫ کال یې د خلاصة الطب کتاب د شاه حسین حضور ته وړاندي کړ. چي سل طلاوې یې انعام واخیست.

د۱۱۴۱ ﻫ کال د وروستي خور ( جمادی الثاني ) په ۱٦ مه نېټه یې د جمعې په ورځ د شاه حسین په امر او لاربنوونه د پټي خزانې کتاب په تدوین او ترتیب او د دې ارزښتمنې تذکرې په لیکلو لاس پوري کړ او د ۱۱۴۲ﻫ کال د کمکي اختر میاشتي ( شوال ) په ۲۷ مه نېټه د جمعې په ورځ د دې کتاب له لیکلو وزګار شو.

باید وویل شي چي پټه خزانه د پښتو ژبي لومړنۍ تذکره ده، چي تر اوسه پوري موندل شوې او د پښتو ژبي د لرغونتوب په تاریخ کي یې یو مهم باب زیات کړی دی، دا مقطع د محمد هوتک له غزلونو څخه ده:

ساقي پاځه د سرو مُلو ډك یو جام را ستا له غمه نا آرامه یم آرام را

### ۵۱ – *محمد اکبر توخی:*

ملا اکبر توخی د هوتکي دورې له پوهانو څخه و، چي زوی یې ملا محمد یونس د شاه حسین په زمانه کښي د کندهار جامع جومات امامت پر غاړه درلود.

### ۵۲ – *محمد ایاز نیازی:*

ملا محمد ایاز نیازی هغه زاهد سړی و، چي دنیا یې ترکه کړې او خانته ژوند یې غوره کړی و او په کندهار کي اوسېده، په طریقت کي د کندهار د هغه وخت د یوه مشهور عارف میا عبدالحکیم کاکړ مرید و. چي شپې او ورځي به یې له ښاره لیري په دښتو او غرونو کښي له وحشي حیواناتو سره تېرولې. ښه آواز او د شعر قریحه یې درلوده او ځیني وختونه یې خپل شعرونه په وزن او غنا سره ویل او د پټي خزانې په وینا د شعرونو دېوان یې متین و او عارفانه ټکي یې درلودل. دغه رباعي د ده ده:

زړه هغه دی چي لري د عرفان برخه دغه ښه ده پر دنیا د انسان برخه
هغه زړه چي نه یې مهر، نه عرفان وي وري په ژوند کي د ناځیزه حیوان برخه

**۵۳ - محمد حافظ " واعظ " :**

د محمد اکبر بارکزي زوی او د هوتکـي دورې لـه پوهـانو او واعظانو څخه و. په کندهار کښې اوسېده او تدریس به یې کاوه او پـه فقـه کې استاد و، هره جمعه به یې وعظ کاوه. تو له دې کبله یـې پـه (واعـظ) سره شهرت موندلی دی، په پښتو کې یې شعري قریحه درلوده او پـه پښتـو ژبه یې د وعظ او امر بالمعروف په اړه یو کتاب د ( تحفـه واعـظ ) بـه نامـه لیکلی د ی

دلهجې په صراحت یې شهرت درلود او په حق ویلو کې له هیڅـا څخه نه وېرېده او په طریقت کښې د کندهار د هغه وخت د مشـهور عـارف میا نورمحمد صاحب مرید و. د شعر بېلـګه یـې د پټې خزانـې پـه ۱۵۷ مـخ کې خوندي شوې ده.

**۵۴ - محمد خان :**

د یحیـی خـان زوی او د مـیرویس خـان وراره و، څرنـګه چـې د ( حاجي انکو ) په لقب یې شهرت درلود. نو د الف په ردیف کې د ( انـکو ) تر سرلیک لاندې معرفي شوی دی، هملته دې مراجعه وشي.

**۵۵ - محمد صدیق پوپلزی :**

ملا محمد صدیق د یار محمد پـوپلـزي زوی د هوتکـي دورې لـه ځوانو شاعرانو څخه و، په ۱۱۱۸ هـ کال د کندهار په ارغسـان سیمه کـښې زېږېدلی دی. د فقهې، منطق، صرف ونحوې علوم یـې له ملانورمحمد برېڅ څخه ویلي دي.

محمد هوتـک لیکي چې: عشقي ځوان دی او زړه یـې لـه لاسـه ایستلی، پخپل محبوب پسې ژاړي، زاري کا، ګریاني کا، دردمن زړه لري او سترګې د اوښکو ډکې لري، مینې هسې په اور سوی دی، چې له کوره کلي ورک وي، سوزناکې بدلې لولي او کله چـې د دردمندانـو پـه ډلـه کښېنـي، مجلس ژړوي او غمجن زړونه په خپلو له نارو غلبلو سـوځي، زمانـه دده پـر ځوانی افسوس کا او عشق یـې جنون ته رسېدلی دی، بالبداهه اشعار وایـي او د زړه درد په سوده کوي. (پټه خزانه، ۱۲۷ - ۱۲۸ مخونه)

د یو غزل مقطع یـې دا ده:

لکه بلبل چي بې لـه ګله بل ارمان نـه لـري  هسي بې یاره بله هیلـه عاشقان نـه لـري

### ۵۶- محمد طاهر جمریانی:

د محمد جمریاني زوی او د هوتکي دورې پښتون شاعر و. خینـي وختونه به یې طبعه بـزم تـه هـم هڅېدلـه. دنـده یـې دکانداري او لـه شکارپوره تر کندهاره پوري سوداګري وه. ډېر کلونـه د بلـوچســتان په مستنګ سیمه کـښې لـه خپـل پـلار سره اوسېده او د علومـو تحصيـل یـې هلته کړی دی. د شعر بېلګـه یـې د پټـې خزانې په ( ۱۵۱ مخ ) کـښې راغلې ده.

### ۵۷- محمد عادل بړېڅ:

ملا محمد عـادل د مـلا محمـد فـاضل زوی د هوتکـي دورې لـه پرهېزګارو عالمانو څخه و. د کندهار په ښوراوک سـيمه کـښې اوسـېده او د اسلامي احکامو په تبلیغ او د مذهبي علومو په تدریس به بوخت و. ( محاسن الصلوة) په نوم یې یو کتـاب د لمـانځه د مسئلو پـه اړه لیکلـی دی، د نظم بېلګه یـې د پټـې خزانې په ۱۴۹ مخ کښې راغلې ده.

### ۵۸- محمد علیخان بلوڅ:

د عثماني دولت په دربار کښې د شاه اشرف افغان لومړنی سفير و، وروسته تر دې چـې عثمـاني دولـت، د شـاه اشـرف سـلطنت پـه رسـمیت وپېژانده دی هلته ولېږل شو.

### ۵۹- محمد عمر لوڼ:

په هوتکي دوره کښي د پښتو ژبې لطيفه ویونکی شاعر و. له محمد طاهر جمریاني سره یـې ظریفانه مشاعري لرلې، د شـعر بېلـګه یـې د پټـې خزانې په ۱۵۱ مخ کښې راغلې ده.

### ۶۰ - محمد فاضل بړېڅ:

ملا محمد فاضل بـړېـڅ د هوتکـي دورې لـه پوهـانو څخـه و، د کندهار په ښوراوک کښې اوسـېده او د علومـو تدریـس بـه یـې کـاوه او د (روضهٔ رباني) په نوم یو کتاب لري.

### ۶۱ - محمد نور بړېڅ:

د هوتکي دورې له عالمانو او مدرسینو څخه و، چې له بـده مرغـه

د حال شرحه یې لاسته نه ده راغلې، یوازې محمد هوتــک لیکـي چـي د هوتکي دورې ځوان شاعر محمد صدیق دودیز علــوم لـه دې عالــم څخـه زده کړي وو.

### ۶۲ – محمد یونس توخی:

ملا محمد یونس د مـلا محمـد اکـبر توخـي زوی، د شـاه حسـین هوتـک په دوره کښي د کندهــار جـامع جومـات امـام او د هغـه مـهال لـه مشهورو مدرسینو څخه و، یو کتاب یـې د ( جامع الفرایض ) په نوم پـه پښتـو ژبه لیکلی دی، چي پټه خزانه یې یادونه کوي.

### ۶۳ – محمود:

د شاه محمود هوتـک (د میرویس خان د زوی) نوم و، چـي د دې کتاب څلورمه برخه په ده پوري مربوطه ده.

### ۶۴ – مرادخان:

پـه کندهـار کـښي د صفـوي دولـت د حـاکم ګرګین قــاتل او د میرویس خان خصوصي نوکر و. چي د میرویس خان پـه امـر یــې ګرګین د زرګونو بېګناهو افغانانو د وینو تویولو په انتقام وواژه. وایي چي مرادخــان مخنث و.[1]

### ۶۵ – ملخی توخی:

سلطان ملخی توخي د مېرمن نازو ( د میرویس نیکه د مــور ) پـلار او د کندهار له قومي رئیسانو او مشرانو څخه و. چي له غزني څخه یـې تـر جلدکه پوري خپلواک حکومت درلود. او د دې کتاب د دویمې برخــي پـه لمنلیک کښي یـې بیان راغلی دی.

### ۶۶ – ملکیار:

د هوتـک بابا زوی و، چي د دې کتاب په لومړۍ برخه کښي یــې بیان راغلی دی.

### ۶۷ – مـیرخـان:

د میرویس خان عوامي نوم حاجي میرخان و، چي ځیني عوام یې تر اوسه پوري په دې نوم یادوي، البته دا توری د ( حاجي میرویس خــان ) مخفف دی.

(۱) میرویس نیکه، ۶۴ مخ.

### ٦٨ – میرویس:

د هوتکي دورې د غورځنګ بنسټ ایښودونکی او مؤسس او د صفوي دولت پرځوونکي د کندهار د خپلواکۍ ګټونکی و. چې د دې کتاب دویمه برخه په ده پورې مربوطه ده.

## ﴿ ن ﴾

### ٦٩ – نازو توخۍ:

میرمن نازو توخۍ د میرویس خان مور او د سلطان ملخي توخي لور وه، چې د دې د ستاینې وړ شخصیت د دې کتاب په دویمه برخه کښي د ( میرویس مور ) تر سرلیک لاندي معرفي شوی دی. سربېره پردې میرمن نازو شعري قریحه او په دوو زرو بیتونو مشتمل یو دېوان هم درلود. چې دلته یې یوه رباعي رانقلوو چې د هغې د لوړو فکرونو استازیتوب کوي.

سحرګه و د نرګس لېمه لانده    ځاځکي ځاځکي یې له سترګو څڅېده
ماوېل څه دي کښلي ګله ولي ژاړې؟    ده وېل ژوند مي دی یوه خوله خندېده.

د اوسني عصر شاعر او فیلسوف علامه اقبال هم همدا فکر په نویو الفاظو راوړی دی:

شبی زار نالید ابر بهار    که این زندگي گریهٔ پیهم است
درخشید برق سبک سیرو گفت    خطا کرده ای خندهٔ یک دم است
ندانم به ګلشن کی برد این خبر    سخنها میان.ګل و شبنم است

### ٧٠ – نصرالله خان ګبر:

له زړورو ګبرانو او اورپرستو څخه و، چې د شاه محمود هوتک په خدمت کښي داخل شو او تر څه مودې وروسته د شاه محمود د یو ټولګي عسکرو په قومندانۍ وټاکل شو او د پارس ځیني ښارونه او ایالتونه یې چې تر هغه وخته پوري د شاه محمود تر واکمنۍ لاندي نه وو راغلي فتحه کړل او په پای کښي د شېراز د نیولو پر وخت سخت ټپي شو، چې د هغه له کبله مړ شو، خو ځرنګه چې یو زړور او تجربه کار او وفاداره سړی و، نو شاه محمود پخپله د ده د جنازې په مراسمو کښي ګډون وکړ او په ډېرو لوړو او شاندارو نظامي مراسمو یې د هغه د جنازې تعزیت وکړ. وروسته له هغه د شاه محمود په امر د هغه پر قبر یوه ښه ګنبده

جوړه شوه او څرنګه چې ده د اور عبادت کاوه، نو شاه محمود دوه تنه موبدین (روحاني زرتښتي مخکښان) مقرر کړل، چې د هغه د قبر په خوا کښې تل اور بل کړي.[1]

تر ده وروسته شیراز د زبردستخان افغان له خوا فتحه شو.

### ۷۱ – نصرالله خان اندړ:

د محمد زمان خان زوی د هوتکي دورې له پښتو شاعرانو څخه و، چې د شاه حسین په وخت کې له غزني څخه کندهار ته لاړ او د شعري طبعې له کبله یې د شاه حسین دربار د شاعرانو په کتار کې ځای ونیو او عزت یې وموند. شعرونه به یې په ملي وزن ویل او د شعرونو دېوان یې هم درلود، په شعر کې یې تخلص (نصر) و. د پټې خزانې لیکوال کاږي: "په ربښتیا چې نصر په بزم اورزم کې د نصر خاوند دی او په موزونانو او دوستانو کې مقبول دی".

### ۷۲ – نصروخان الکوزی:

د جلدک سیمي د الکوزي قبیلې له مشرانو څخه و، په هغه لومړنۍ ملي جرګه کې یې ګډون کړی و، چې د میرویس خان له خوا په کندهار کښې د پردیو د واکمنۍ د غورځولو لپاره جوړه شوې وه.[2] د حال نوره شرحه یې لاسته نه ده راغلې.

### ۷۳ – نورالله خان:

د شاه محمود هوتک دورې له جنګیالیو څخه و. کله چې شاه محمود په ۱۱۳۵ هـ کال د کرمان خوا ته لاړ، (بام) کلا یې چې په لاره کې پرته وه، تر نیولو وروسته د ارتزاقي موادو او پوځي سامانونو د یو مخزن او ګدام په توګه همدې نورالله ته وسپارله. که څه هم قاضي عطاءالله خان دغه کس د شاه محمود (تره) بولي.[3] خو ښایي چې د شاه محمود له خپلوانو څخه وي، ځکه چې په نورو کتابونو کښې د میرویس خان کوم ورور د نورالله خان په نوم نه دی لیدل شوی، (د همدې کتاب څلورمي برخې ته دې رجوع وشي).

(۱) تاریخ ایران، سر جان مالکم.
(۲) پټه خزانه، ۱۴۷ مخ.
(۳) د پښتنو تاریخ، اول ټوک ۷۰ مخ.

### ۷۴ - نورخان بړېڅ:

د افغانانو د بړېڅو قبيلې له مخورو او نفوذ لرونکو مشرانو څخه و، څرنګه چې رېديخان يې په محمود نامه کښبي يادوي، د يرغلګرو له منځه وړلو لپاره د ملي پاڅون په لومړنۍ جرګه کي يې د خپلې قبيلې د استازي په توګه ګډون کړی و. د حال نور بيان يې لاسته نه دی راغلی.

### ۷۵ - نورمحمد توخي (ملا):

د ملا يارمحمد خان زوی و او د هوتکي دورې له مشهورو عالمانو او مدرسينو څخه و. پنځه کاله يې په هوتکي شاهي کورنۍ کښي د خصوصي ښوونکي حيثيت درلود، د شاهي کورنۍ ښځو، زامنو او نجونو ته يې درس ورکاوه؛ په ۱۱۴۱ هـ کال کښي اتيا کلن و، يو کتاب يې د (نافع المسلمين) په نامه ليکلی دی. چي د فقهې او اخلاقو د علم په بحثونو مشتمل دی، د عمر په وروستيو وختونو کي په پنجوايي سيمه کښي د مشکوٰة، بخاري او د احاديثو او فقهې د نورو کتابونو په تدريس بوخت و.

په پښتو کښي يې شعر هم وايه او د شعر مضمون يې نصيحت او وعظ و، چي د پټې خزانې په ۱۶۳ مخ کښي يې شعري بېلګه کتلای شئ.

## (هـ)

### ۷۶ - هوتک بابا:

د هوتکيانو قبيلې سرسلسله دی، چي د ده ستر شخصيت ددې کتاب په لومړۍ برخه کښي معرفي شوی دی. دلته يوازي د هغه د پښتو ملي ترانې متن رانقلوو:

پر سور غر بل راته نن اور دی — وګړيه جوړ راته پېغور دی
پر کلي کور باندي مغل راغی — هم په غزني هم په کابل راغی

غښتلو ننګ کړئ دا مو وار دی — مغل راغلی په تلوار دی
په پښتونخوا کښي يې ناتار دی — پر کلي کور باندي مغل راغی

آه د مرغي غښتليو راسئ — پر ننګ ولاړ د پښتونخوا سئ
توري تېرې، غشي تر ملا سئ — پر کلي کور باندي مغل راغی

زلمو په غشیو کړئ وارونه — د تبرو تورو گذارونه
ور ورانـدي کړئ خپل تترونه — پر کلي کور باندي مغل راغی

زما د زلمو ويني بهيږي — خمکه او غرونه په سره کيږي
ميرخي زغلي او ترهيږي — پر کلي کور باندي مغل راغی

پښتنو هلئ پر غره جنگ دی — سورغر په وينو د دوی رنگ دی
مهال د توري دی د ننگ دی — پر کلي کور باندي مغل راغی

زلمو پر ننگ خانونه مره کړئ — دښمن په غشيو مويپيه کړئ
د پښتونخوا مخکي ساته کړئ — پر کلي کور باندي مغل راغی.

﴿ ی ﴾

### ۷۷ - یار محمد هوتک :

ملا یارمحمد خان هوتک په هوتکي دوره کښي د کندهار له مشهورو عالمانو او مدرسينو څخه و، چي شاه حسين د فقهي، تفسير، منطق او بلاغت علوم له ده څخه زده کړي دي.

د نور حال بيان يې په لاس نه دی راغلی، يوازي دا چي د پټې خزانې ليکوال هغه د ( اعلم العلماء ) او ( استادالعلماء ) په لقبونو ياد کړی او ليکي چي د شاه حسين هوتک معلم و او دا هم وايي چي شاه حسين خپل شعرونه د ده په ملاحظه رسول او ده به د شاه حسين د شعرونو نيمگړتياوې او تېروتنې ليري کولې.

### ۷۸ - یحیٰی خان :

د ميرويس خان ورور و، چي په ملي مجاهدو کښي به يې له ميرويس خان سره همکاري کوله او په هغه لومړنۍ ملي جرگه کي يې هم گډون کړی و، چي د تېري کوونکو د واکمنۍ د غورځولو لپاره جوړه شوې وه.

### ۷۹ - یوسف هوتک :

په ملي هڅو او مبارزو کښي د ميرويس خان ملگری و او د کلات له مربوطاتو څخه د سيورۍ سيمې د هوتکيانو رياست يې پر غاړه درلود او د ربدېخان مومند په وينا د خپلې قبيلې د استازي په توگه يې په لومړنۍ ملي جرگه کښي گډون کړی و.

**۸۰ - یونس کاکړ:**

**د کاکړو قبیلې له مخورو مشرانو او د هېواد د آزادۍ د لارې له مجاهدینو څخه و، چې د ملي پاڅون په لومړنۍ جرګه کښې یې له میرویس خان سره ژمنه وکړه، چې پر یرغلګرو به په حمله کښې د ده کلک او صمیمي ملګری او همکار وي.**

❋ ❋ ❋

پای

# د صحاف نشراتي مؤسسې
# خپاره شوي آثار

| شمېره | کتاب | لیکوال/ ژباړن |
| --- | --- | --- |
| ۱. | د کندهار مشاهير | محمد ولي خلمي |
| ۲. | پښتومثنوي | مولوي صالح محمد هوتک |
| ۳. | د ميرزا حنان بارکزي ديوان | سريزه، سموون: م. معصوم هوتک |
| ۴. | د افغانستان او روسيې د سياسي روابطو لنډه تاريخچه. | محمد ولي خلمي |
| ۵. | زموږ ليکني | محمد حليم سليمي |
| ٦. | د افشاري استبدادونو پرضد د افغانانو پاڅونونه. | کانديد اکاډميسين م. اعظم سيستاني<br>ژباړه: صالح محمد صالح |
| ۷ | ميرزا عبدالودود هوتک | م. معصوم هوتک |
| ۸. | هوتکيان | عبدالرؤف بېنوا<br>ژباړه: يونس مراد |
| ۹. | ورکه مېنه | عبدالباري جهاني |
| ۱۰. | پايکوب | عبدالباري جهاني |
| ۱۱. | د سباوون په تمه | عبدالباري جهاني |
| ۱۲. | هرات، پښتانه او ستره لوبه | عبدالباري جهاني |
| ۱۳. | دکندهار او کابل تاريخي مسجدونه | محمد ولي خلمي |
| ۱۴. | د بېنوا پرېشانه افکار | اروانباد استاد عبدالرؤف بېنوا |
| ۱۵. | ستوري په لمن کي | درويش دُراني |
| ۱٦. | پښتني انځور | محمد نعيم آزاد |

